په نننه کوم خودا بې غیرته چېرته په تندې لګېږي دا هر یو په شا لګېږي هر مردار عسکر یا صاحب منصب چې ګوري نو لومړی په پونده لګېدلی وي.

د هغه به همیشه خوله له خندا ډکه وه او د جنګ په سخت او تریخ ساعت کې به هم هغه یوه نیمه ټوکه ویشتله.

له ټاټک نه د یوه صاحبمنصب کېږ لاس سنګاره شو د ځنګ بجاهد ته یې وویل که یې ستړی کوټه کارکولی نو د ساعت عقرب مې یې په نننه کاوه ته ګوره ورته؛ د ټوپک له ډزسره د صاحبمنصب لاس او ساعت دواړه په هوا شول هغه به د ډزترمخ د عسکر، صاحبمنصب، یا ټاټک، لاری او . . . . . . . یو ځانګړی ځای په نننه کاوه په کوم ځای به چې د هغه زړه ورغی - او بیله دې یې هیڅکله پر ماشه ګوته نه راکاږله.

خدای خبر چې د کوم مجاهد د ټوپک مرمۍ د جبهه خانې پرمو ټر ومښت چې د ټانکونو له منځه یو درز اولمبې پورته شوې.

داولمبې دومره ژیغرانده او چاودونکي [اوسني] سختې وه چې نژدې ټانکونه او لارې یې همغلته پخپلو لمبو کې واخیستلې او د نورو چې وس کېده او لاره یې ایستلې شوای نو بیا یې نه سمه کتله او نه کره.

او چې له کابل نه د تښتېدلو عسکرو او صاحبمنصبانو حال را ورسېد نو مغوی خبره دومره لویه کړې وه چې: پدوی له ځانو، خواو او هوا نه څه کوي چې د ځمکې له تل نه هم ډزې او برید ونه کېدل. داسې چې هر کوم هرې ډېرې، هرې اوښې او هر بوټې پرې باران چلول.



# . . . او: په جرګومرکونشي کارتمام

د خلقیانو له جګړې ستوماته او نهیلي حکومت د بې ته اړ شو چې د زور له لارې نه بلکې د زاریو او نسواتو له لارې ځینې اقوام ته د هغوی سپین ږیری او مشهور یې خبرې چې په کابل کې د دوی د وحشت تر چړې لاندې او سېدل د جرګې په نوم واستوي.

همدا و چې په کابل کې یې د ورکو مشهورې خبرې او مخور داخله وزارت ته جلب کړل په لستونو کې د هغو ټولو ماموریتو نوموړو نیول شوی و چې د وړ کو چک ته منسوب او لاد څرخې پله د زندان میلمانه شوي نه وو.

دغه کسان د روژې په ورو ستیو ورځو کې د داخله وزارت د ماموریتو د ډوډۍ خوړلو په سالون کې راغونډ کړی شول.

دا هغه وخت و چې اسلم وطنجار مازی تش په نوم وزیر و، خود دغه وزارت واک او صلاحیت ظاهراً د پولیسو د لوی قوماندان انجنیر علي شاه پیمان په لاس کې و.

علي شاه پیمان چې یې امیني خلقي او لکه [امین] د مارغونډې ښایسته و د

په نبنه کوم خوداې غیرته چېرته په تندي لګېږي؟ هر یو په شا لګېږي هر مردار عسکر یا صاحب منصب چې ګوري نو لومړۍ په پونده لګېدلی وي.

د هغه به همېشه خوله له خندا ډکه وه او د جنګ په سخت او تریخ ساعت کې به هم هغه یوه نیمه ټوکه ویشتله.

له ټانک نه د یوه صاحبمنصب کېښ لاس سنګاره شو د څنګ مجاهد ته یې وویل که یې سترګې کار کولی نو د ساعت عقرب مې یې په نبنه کاوه ته ګوره ورته ؛ د ټوپک له ډزې سره د صاحبمنصب لاس او ساعت دواړه په هوا شول هغه به د ډز ترمخ د عسکر، صاحبمنصب، یا ټانک، لاري او ...... یو ځانګړی ځای په نبنه کاوه په کوم ځای به چې د هغه زړه ورغی ـ او بیله دې یې هیڅکله پرما شه ګوته نه راکاږله.

خدای خبر چې د کوم مجاهد د ټوپک مرګک د جبهه خاني پر موټر ومښت چې د تا نکونو له منځه یو درز اولېږي پورته شوې.

داور لمبې دومره ژبغرانده او چاودنه راسې ګڼته وه چې نژدې ټانکونه او لارۍ یې همغلته پخپلو لمبو کې واخیستلې او د نورو چې وس کېده او لاره یې ایستلې شوای نو بیا یې نه سمه ګټله اونه کړه.

اوچې له کابل نه د تېښتېدلو عسکرو او صاحبمنصبانو حال راو رسېدنو مغوی خبره دومره لویه کړې وه چې: پدوی له ځاورو خواوو او هوا نه څه کوي چې د ځمکې له تل نه هم ډزې او بریدونه کېدل. داسې چې هرکم هرې ډېرې، هرې اوړې او هر بوټي پرې باړ ونه چلول.



# ... او: په جرګومرکونشي کار تمام

د خلقیانو له جګړې ستومانه او نهیلي حکومت دې ته اړ شو چې د زور له لارې نه بلکې د زاریو او نسواتو له لارې ځینې اقوام ته د هغوی سپین ږیري او مشهور خېرې چې په کابل کې د دوی د وحشت تر چړې لاندې او سېدل د جرګې په نوم واستوي.

همدا ؤ چې په کابل کې یې د ورکو مشهورو خېرې او محور داخله وزارت ته جلب کړل په لستونوکې د هغو ټولو مامورینو نومونه نیول شوي ؤ چې د ورکو چک ته منسوب او لاد څرخي پله د زندان میلمانه شوي نه وو.

دغه کسان د روژې په وروستیو ورځو کې د داخله وزارت د مامورینو د دوډۍ خوړلو په سالون کې راغونډ کړی شول.

دا هغه وخت ؤ چې اسلم وطنجار مازی تش په نوم وزیر ؤ، خود دغه وزارت واک او صلاحیت ظاهراً د پولیسو د لوی قوماندان انجنیر علي شاه پیمان په لاس کې ؤ.

علي شاه پیمان چې یې امیني خلقي او لکه ایني د مار غونډې ښایسته ؤ د

حکومت په نمایندګۍ سالون ته په ډېر کرو اوښکو راننوت، دحق په جانب اوغمناکه پوز په نیولو سره یې ددغو کسانو په وړاندې خبرې پیل کړې.

ده وویل: زه دیوه پښتون په توګه له وروڼو سره ډېر زیاته مینه لرم داپه هم وویل چې وروڼه دحکومت له نظره ډېر شریف خلک دي په تېره بیا پر ده ډېر ګران دي.

ده په شرافت سوګند یاد کړ چې هغه دردناک حالت چې د وروڼو ښځو اوماشومانو ته د جګړې له امله په غرونو کې داستوګنې څخه ورپیښ شویدی په خاصه توګه د ده د زړه سوی ورېدی خو په ضمن کې یې د دې خبرې یادونه هم وکړه چې حکومت هغه وسایل اوامکانات په لاس کې لري چې د وروڼو ټوله سیمه وربا ندې په بل ځ واړوي خوزما دا حالت بدغه مېړني اوغیرتي قام نه لوړېږي نوداسې یوکار باید وشي چې ددواړو خواوو یعنې حکومت او وروڼو حیثیتونه پکې وساتل شي:

بیان داهم وویل: په حکومتي دستګاه کې له وروڼو نه داسې کسان شته چې د وروڼو په مقابل کې دسختو جګړو اوعسکري عملیاتو تجویز وړاندې کوي خوزه د یوه پښتون په توګه چې وروڼه ډېر راباندې ګران دي دهغوی په مخ کې درېږم.

ده راجلب شویو کسانو ته مخ وکړ څاوه ویې ویل تاسې خپل قوم ته ورشئ ممکن هغوی له تاسو سره ښه سلوک ونکړي خوهرڅه چې د زړه کوي بیاهم ستاسو قوم دی ورشئ دلاسا یې کړئ.

دبیان په خبروکې دځینې ماموریتونو تر پلاله لاندې یواخطار اوګواښ هم وړاندې شو او هغه دا چې داماموریت دې یاله دوی سره ودرېږي او یا دې دخپل قوم څنګ ونیسي.

په سالون یو ویرجن سکوت حکم چلاوه دناستو کسانو له څېرو د ژړو -



اندېښنو لوخرې ختلې هغوی زیاتره د بیان خبرو ته نه بلکې خپل ژوند او سبا ته په فکر کې ؤ. داسې غمناکه چوپتیا چې سری ذکر کاوه په ناستو کسانو کې دمه نه چلېږي اوهسې یې ستر ګې غړېږي.

اسمعیل خان چې یو وخت ډېر مقتدر والي ؤ دغه چوپتیا ماته کړه او د نورو په نمایندګۍ یې څو خبرې وکړې ده هم دقام په دغه دردوونکي حالت اندېښنه څرګنده کړه او په ضمن کې یې د ښونو وروڼو خلقیانو دې تجویز ته چې په وروڼو دې سخت عملیات سرته ورسېږي داشاري په تړخ کې وویل حکومت اوس هم د دې دول عملیاتو په برخه کې صرفه نده کړې خوله دې لارې څخه یې کامیابي نده تر لاسه کړې.

لدې وروسته بیان له غونډې ووت او په ظاهرکې دوه تنه خلقیان یود بابالا شا محمود الله دبوم کلي نعیم په غونډه کې پاته شول دوی د یو لړ مسکو ټېټو - وروسته دیوه لست له مخې دهغې کسانو نومونه غونډې ته واوړول چې باید وروڼو ته د جرګې له پاره روان شي، غونډې پدې نومونو څه اعتراض ونه کړاو یا یې نشو کولی.

* * *

د ۲۷ روژې په ماز یګر دوه هلیکوپتر الوتکې په ډېر لوړوالي سیمې ته نوتې مجاهدین چې د خپلو موړچو د پاسه ناست وو پر الوتکو یې بنې د برې کولې وچلولې هغوکولي الوتکو ته رسېدی چېرې شوې اوکېدی شي هغوی پرې خبر شوي هم نه وي خودوی پرې خپل زړونه تش کړل او هغه یې بې ځوابه پرې نښودې.

الوتکو له پاسه سپیني پاڼې شیندلی او چې ترڅو ځمکې ته را رسېدې نودتولو پام هغه خواته وو، ماشومانو به منډې پسې وهلې اودالوبه د هغوی دلرې شپې د ساتېرۍ ښه مشغولا وه، پاڼې ځمکې ته راورسېدلی چا به له قهر او خښم څخه ټوټه کړې - چا به بابیزه ایستو او چولی اویو نیم به فکر ورته یو وړ خوعمومي فضا داسې وه چې مجاهدینو د روژې د ماتي سنډګانه اویو بل ته به یې د دغو پاڼو په ښودلو داسې

حکومت په نمایندګۍ سالون ته په ډېرکړ اوفرکې رانوټ، دحق په جانب اوغمناکه پوز په نیولو سره یې ددغو کسانو په وړاندې خبرې پیل کړې .

ده وویل : زه دیوه پښتون په توګه له وردګو سره ډېر زیات مینه لرم داپې هم وویل چې وردګ دحکومت له نظره ډېر شریف خلک دی په تېره بیا پر ده ډېر ګران دی .

ده په شرافت سوګند یاد کړ چې هغه دردناک حالت چې د وردګو بنځو اوماشومانو ته دجګړې له امله په غرونوکې داستوګنې ځنه ودپیښ شویدی په خاصه توګه د ده د زړه سوی وړ دی خو په ضمن کې یې د دې خبرې یادونه هم وکړه چې حکومت هغه وسایل اوامکانات په لاس کې لري چې د وردګو ټوله سیمه ورنباندې په بل ځ واړ وي خوزما داحالت پدغه مېړني اوغیرتي قام نه لوړېږي نوداسې یوکار باید وشي چې ددواړو خواوو یعنې حکومت او وردګو حیثیتونه یې وساتل شي :

بیان داهم وویل : په حکومتي دستګاه کې له وردګو نه داسې کسان شته چې د وردګو په مقابل کې دسختوجګړو اوعسکري عملیاتو تجویز وړاندې کوي خوزه د یوه پښتون په توګه چې وردګ ډېر راباندې ګران دی دهغوی په مخ کې درېږم .

ده راجلب شویو کسانو ته مخ وګرځاوه ویې ویل تاسې خپل قوم ته ورشئ ممکن هغوی له تاسو سره بنه سلوک ونکړي خوهرڅه چې د زړه کوی بیا هم ستاسو قوم دی ورشئ دلاسا یې کړئ .

دبیان په خبروکې دڅو ماموریتونه تر پلاله لاندې یواخطار اوکوابس هم وړاندې شو او هغه داچې داماموریندې پاله دوی سره ودرېږي او یا دې دخپل قوم څنګ ونیسي .

په سالون یو ویرجن سکوت حکم چلاوه دناستو کسانو له څېرو ډار وو -



اندېښنو لوخرې ختلی هغوی زیاتره د بیان خبرو ته نه بلکې خپل ژوند او سبا ته په فکر کې ؤ. داسې غمناکه چوپتیا چې سری ذکی کاوه په ناستو کسانو کې دمه نه چلېږې اوهسې یې ستړګې غړېږې .

اسمعیل خان چې یو وخت ډېر مقتدر والي ؤ دغه چوپتیامانه کړه او د نورو په نمایندګۍ یې خوخبرې وکړې ده هم دقام پدغه دردوونکي حالت اندېښنه څرګنده کړه او په ضمن کې یې دخوښتنو وردګو خلقیانو دې تجویز ته چې په وردګو دې سخت عملیات سرته ورسېږي داشارې پرتڅ کې وویل حکومت اوس هم د دې دول عملیاتو په برخه کې صرفه نه کړي خوله دې لارې ځنې یې کامیابي نده ترلاسه کړې .

لدې وروسته بیان له غونډې ووت او په ظاهرکې دوتنه خلقیان یود بابالا شامحمود اوبل دبوم کلي نعیم په غونډه کې پاته شول دوی دیولړ مسکو ټېټو - وروسته دیوه لست له مخې دهغې کسانو نومونه غونډې ته واورول چې باید وردګو ته دجرګې له پاره روان شي ، غونډې پدې نومونو څه اعتراض ونه کړ او یا یې نشو کولی .

* * *

د ۲۷ روژې په ماښګر دوه هلیکوپټر الوتکې په ډېر لوړوالي سیمې ته ننوتې مجاهدین چې د خپلو مورچو دپاسه ناست وو پر الوتکو یې بنې د برېکولی وچلولی هغه کولی الوتکو ته رسېدې چېرې شوې او کېدی شي هغوی پرې خبر شوي هم نه وي خودوی پرې خپل زړونه تش کړل او هغه یې بې ځوابه پرې نښودې .

الوتکوله پاسه سپینې پاڼې شیندلې او چې ترڅو ځمکې ته راورسېدې نود ټولو پام هغه خواته ووماشومانو به منډې پسې وهلې اودالوبه دهغوی دلږې شیبې دساتېرې بنه مشغولاوه ، پاڼې ځمکې ته راورسېدلې چا به له قهر او خښم ځنه نتو ته کړې - چا به بابېزه ایستواچولې او یونیم به فکر ورته یووړ خوعمومي فضا داسې وه چې مجاهدینو د رژیم دماتې سندګانه او یبول ته به یې د دغو پاڼو په ښودلو داسې

بسم الله الرحمن الرحيم

# سريزه

په هيواد دکمونستي مزدور رژيم پرضد پاڅونونه په بيلابيلو سيمو کي بيلابيلي بڼي لري که څه هم په هره سيمه کي دقيام بنسټيزمحرك او چورليځ عقيده او د ملحد او گوډاگي رژيم پرخلاف دجهاد دفرضيت اصل تشکيلوي خو ددغو پاڅوڼونوعيت ، پيلامه ، دوام او مشخصات له ځينو داسي ځانگړتياووڅخه برخمن دي چي په بيلا بيلو گټه - گوريو کي ويشلي ښکاري .

دملحد او مزدور رژيم پر ضد چي موږ دلته دکوم پاڅون خبري کوو هغه ديو لړ داسي ځانگړنو لرونکي دي چي دهيواد په نورو سيموکي يي ساري نه ليدل کيږي.

موږ دلته ديو داسي پاڅو ن خبري کوو چي ولس ديوه بريالي تاکتيك له مخي ددښمن په خپلو وسلو ديوه ملي قيام او يوه داسي قيام له لاري چي دسياسي گوندونو او تنظيمونو له هر ډول اغيز او نفوذ څخه لوړ ؤ، کابل ته ډير نژدي ديوه ستر او ولسي خوځښت بهير توپاني کړ .

که څوك په بيطرفانه توگه دغه قيام او دهغي تاريخي پس منظرته يو ځغلنده نظرواچوي نو داستاد رباني داخبره به له يوي مخي ورسره تائيد کړي چي:«ولسونه له سياستمدارانو ډير هوښيار او دتاوجنو حالاتو په وړاندي خورا قاطع او ځيرك دي».

موږ نه غواړو ددغه قيام په مشخصاتو اوږدي خبري وکړو خو په لنډه توگه ځينو ټکوته اشاره کوو او هغه داچي دغه قيام له پيله دچريکي جگړي په بڼه نه ؤ راولاړشوي بلکي له هماغه لومړي ورځي يي ديوه ولسي خوځښت او ملي قيام په بڼه دټول ولس دملاتړ له مخي ديوي

څرګنده ولې چې رژیم ورته د ننواتي لمن وغوړوله خپله ناکامي یې ومنله او د دوی د ایماني پرتم پر وړاندې سلامي شول.

پر کاغذونو چې په زرګونو پاڼې یې په ټوله دره کې تیت شوې وې لیکل شوي ؤ:

دلوی خدای په نامه

«د وردګو کرانو او سپیڅلو اوسېدونکو ته:

څرګنده چې د ثور د ستر انقلاب په رڼا کې د وردګو ټولو اوسېدونکي د انقلاب سره تضاد نلري. نو هغه وقایع او پېښې چې تېر او سه هلته منځ ته راغلي د سوء تفاهم او د دښمنانو د تبلیغاتو ثمره ده نو ځکه خلقي دولت د وردګو ټولو اوسېدونکو ته د کمکي اختر د مبارکو ورځو په احترام پوره او شپړه عفوه اعلانوي او ستاسو قومي جرګه چې دلاندنیو اشخاصو څخه عبارت ده تاسې ته د مفاهمې او عفوې د عملي کولو د پاره درځي.

جرګې ته د دولت لخوا د عفوې د عملي کولو له پاره چې لار هواره کړي پوره صلاحیت ورکړ شوی. د جرګې غړي لاندې قومي مشران دي:

۱- محترم محمد انور خان واحدي، ۲- غلام درویش خان (ابرکل)، ۳- عبدالغنی خان ۴- بسم الله علاقدار، ۵- خدایداد خان خر، ۶- میرافغان، ۷- عبدالحنان خان مینه پال، ۸- ډګروال سید جان خان، ۹- شیر احمد خان، ۱۰- وکیل امین الله خان ۱۱- مامور جلال الدّین خان، ۱۲- مدیر محمد آصف خان، ۱۳- عید محمد خان، ۱۴- ملک شیر آقا خان، ۱۵- ملک عبدالرؤف خان، ۱۶- پخواني والي اسمعیل خان، ۱۷- قوماندان عبدالرؤف خان، ۱۸- عبدالجلیل وجدي، ۱۹- عبدالقدیر خان، ۲۰- مدیر محمد یعقوب خان، ۲۱- رئیس محمد انور خان اکبري او نورو.

دافغانستان د موکراتیک جمهوري دولت لخوا»

لدې ځایه هم وردګو ته دوې جرګې د توپونو او ټانکونو په بدرګه تللې



وې خو د هغوی د فعالیت سطحه او ساحه ډېره محدوده وه او تقریباً په او غیر رسمي بڼه یې درلوده چې د هغو جرګو کې دغه کسان شامل وو:

۱- حاجي خدایداد خان خر.

۲- ډګروال عبدالحق د شمنۍ په زوی مشهور.

۳- حاجي سید رسول د تنګي درې او سېدونکی.

۴- حاجي موسی وردک د شیخ آباد.

۵- غند مشر کریم خان د سید آباد د اولسوالۍ اوسېدونکی.

۶- ملک شېر اقا د جلګې علاقدارۍ اوسېدونکی.

۷- حاجي جمعه ګل د شش قلعې اوسېدونکی.

۸- مدیر یعقوب د دوراخېلو اوسېدونکی.

۹- محمد کریم خان د دوراخېلو اوسېدونکی.

۱۰- ډګروال سید جان د چک ولسوالۍ اوسېدونکی. (۱)

سیمې ته د جرګې دغړو په راتلو مجاهدینو دوې مخالفې نظریې لرلې ځوان پاتکی ورسره مخالف ؤ چې د کمونیزم او اسلام تضاد و نه د پخلاینې ندی او داد رژیم یوه دسیسه ده خو قومي سپین ږیري چې د جرګو مرکې پر کودونو وارد کسان وو د جرګې د راتلو او مرکې پلوی وو او ویل یې چې که څه هم د اتضاد و نه د پخلاینې ندی خو د جرګې رد ول هم سم ندی جرګه منو او بیا یې پخپله کټه یې راوغږخوو. دغه اختلاف د مجاهدینو ترمنځ د خو ورځو مباحثې او سخت جدل سبب شو دا نظر هم وړاندې کړ شو چې جرګه دې راشي خوغړي دې ونیول شي او بیا دې کابل ته د تلو اجازه نه ورکول کېږي او لدې لارې دې هم پر رژیم دیوبل فشار په توګه کار واخیستل شي.

(۱) وګ - پیرچک او دایمرداد وکې اسلامي پاڅون لیکوال محمد زبیر شفیقي ۱۰۸ - ۱۰۹ مخونه.

څرګنده وله چې رژیم ورته د ننواتې لمن وغوړوله خپله ناکامي یې ومنله او د دوی د ایماني پرتم پر وړاندې سلامي شول.

پر کاغذونو چې په زرګونو پاڼې یې په ټوله دره کې تیت شوې وې لیکل شوي ؤ:

دلوی خدای په نامه

«د وردګو کرانو او سپېڅلو اوسېدونکو ته:

څرنګه چې د ثور د ستر انقلاب په رڼا کې د وردګو ټول اوسېدونکي دانقلاب سره تضاد نلري. نو هغه وقایع او پېښې چې تر اوسه هلته منځ ته راغلې د سوء تفاهم او د دښمنانو د تبلیغاتو ثمره ده نو ځکه خلقي دولت د وردګو ټولو اوسېدونکو ته دکمکي اخترد مبارکو ورځو په احترام پوره اوشپړه عفوه اعلانوي او ستاسو قومي جرګه چې دلاندینو اشخاصو څخه عبارت ده تاسي ته د مفاهمي او عفوې د عملي کولو د پاره درځي.

جرګې ته د دولت لخوا د عفوې د عملي کولو له پاره چې لار هواره کړي پوره صلاحیت ورکړ شوی. د جرګې غړي لاندې قومي مشران دي:

۱- محترم محمد انورخان واحدي، ۲- غلام درویش خان (ابرکل)، ۳- عبدالغني خان ۴- بسم الله علاقدار، ۵- خدایداد خان خړ، ٦- میرافغان، ۷- عبدالحنان خان مینه پال، ۸- ډګروال سید جان خان، ۹- شیراحمد خان، ۱۰- وکیل امین الله خان ۱۱- مامور جلال الدّین خان، ۱۲- مدیر محمد آصف خان، ۱۳- عید محمد خان، ۱۴- ملک شیرآقا خان، ۱۵- ملک عبدالرؤف خان، ۱٦- پخوانی والي اسمعیل خان، ۱۷- قوماندان عبدالرؤف خان، ۱۸- عبدالجلیل وجدي، ۱۹- عبدالقدیر خان، ۲۰- مدیر محمد یعقوب خان، ۲۱- رئیس محمد انورخان اکبري او څېني نور.

دافغانستان د موکراتیک جمهوري دولت لخوا.»

لدې څخه هم ورګونه ته دوې جرګې د توپونو او ټانکونو په بدرګه تللې



وې خو د هغوی د فعالیت سطحه او ساحه ډېره محدوده وه او تقریباً په او غیر رسمي بڼه یې درلوده چې د هغو جرګو کې دغه کسان شامل وو:

۱- حاجي خدایداد خان خړ.

۲- ډګروال عبدالحق د شمنې په زوی مشهور.

۳- حاجي سید رسول د تنګي درې اوسېدونکی.

۴- حاجي موسی وردک د شیخ آباد.

۵- غند مشر کریم خان د سیدآباد د اولسوالۍ اوسېدونکی.

٦- ملک شېر اقا د جلګې علاقدارۍ اوسېدونکی.

۷- حاجي جمعه ګل د شش قلعې اوسېدونکی.

۸- مدیر یعقوب د دوړ غېلو اوسېدونکی.

۹- محمد کریم خان د دوړ غېلو اوسېدونکی.

۱۰- ډګروال سید جان د چک ولسوالۍ اوسېدونکی.(۱)

سیمې ته د جرګې د غړو په راتلو مجاهدینو دوې مخالفې نظریې لرلې ځوان پاټکي ورسره مخالف ؤ چې د کمونېزم او اسلام تضاد ونه د پخلاینې ندی او داد رژیم یوه دسیسه ده خو قومي سپین ږیري چې د جرګو مرکې پر کودونو وارد کسان وو د جرګې د راتلو او مرکې پلوي وو او ویل یې چې که څه هم دا تضاد ونه د پخلاینې ندی خو د جرګې ردول هم سم ندی جرګه منو او بیا یې پخپله کټه یې راوغرخوو. دغه اختلاف د مجاهدینو تر منځ د څو ورځني مباحثې او سخت جدل سبب شو دا نظر هم وړاندې کړ شو چې جرګه دې راشي خو غړي دې ونیول شي او بیا دې کابل ته د تللو اجازه نه ورکول کېږي او لدې لارې دې هم پر رژیم دیوبل فشار په توګه کار واخیستل شي.

---

(۱) وګ - پرچک او د ایرباد وکې اسلامي پاڅون لیکوال محمد زبیر شفیقي ۱۰۸-۱۰۹ مخونه.

دغه مباحثو او جدلونو نه یوازې د مجاهدینو د مشرانو ترمنځ بلکې د ګردو
مجاهدینو او د سیمې داوسېدونکو ترمنځ د مباحثې جدي او خښمېدلې
مجلسونه تاوده کړل.

بالاخره د قومي مشرانو پرېکړه ومنل شوه او د جرګې غړو ته د
راتلو اجازه ورکړشوه د چک د اسلامي انقلابي شورا غړو د علي خان په کلي
کې د جرګې د غړو هرکلی وکړ که څه هم دا هرکلی د زړه د پاسه هرکلی وُ.
خو په کوټه کې د جرګې غړي په عنعنوي توګه بر کېنول شول او د شورا غړي
او مجاهدینو دروازو ته نژدې ځایونه ونیول. خو بیا هم د جرګې له غړو دډار او
وېرې خپسی منګولې نه وې لیرې کړې او س هم له دوی سره دا اندېښنه وه چې
توم به څه ورسره کوي او له دوی څخه به د رژیم د ناکردو څه ور انتقام او
غچ اخلي، دغه ډار او اندېښنه د دوی له ناستې، حرکاتو، خبرو او کتلو څخه ډېره
ښه څرګندېده-دوی ته ځانونه له ټولې مشهورتیا، مخوری او مشرتوب سره
ډېر وړوکی ښکارېدل، د مجاهدینو د ایماني پرتم، روحي ډاډ او بې سیاله مقاومت
له ارخه دوی ځانونه ډېر پیکه احساسول په تېره دا چې سیمې ته د جرګې د غړو
په راتلو مجاهدینو یو لړ مانورې ترسره کړې دوی د لارې په اوږدو کې
په ډېر صلابت او قوت سره ځایونه نیولي وُ او د لارو دواړو غاړو ته ټوپک په لاس
او په کارتوسو پټ ولاړو چې دلمر وړانګو به د کارتوسو سره د ټکر پر وخت
یو ړول طلايي وړانګې ښندلې او ځلکونه به یې کول- دوی په یوه ځای کې د
بخاري نل په ډبرو او بوټو کې پټ کړی او له پاسه یې ترپال پرې غوړولی وُ داسې
ښکارېده لکه او بوس توپ؛ چې هرڅاېې په لیدو دا خیال کاوه چې یوه داخوړېږ
دروند توپ دی - دوی د الله اکبر په پرله پسې شعارونو او غوږ نیو د جرګې د
غړو هرکلی کاوه او هغوی ته یې د خپل تصمیم او همت ننداره ښودله چې ځینو
ځینو به یې له ګواښنه د کړ عمل هم ترسره کړ.



د اسلامي انقلابي شورا رئیس عبدالکبیرخان د جرګې له غړو سره
خبرې پیل کړې او لکه چې د دوی وېره او اضطراب یې درک کړی
وی په مینه، سړه سینه او په له موسکا ډکه خوله یې د جوړنا جوړه له
احوال وروسته خپلې پوښتنې پدې ډول پیل کړې:

د الوتکو نه په اچول شویو کاغذونو کې ټول معرفي شوی کسان
نشته د مثال په توګه د محمد انور واحدي ځای تش دی او ملک عبدالرؤف خان
هم له تاسې سره نه لیدل کیږي موږ نه پوهیږو چې هغوی ولې ندی راغلي بندیان شوي او که څنګه خو به نه وي؟
دغه پوښتنې هغوی ته هم تلوالی کړل او لکه چې له یوې سختې او خطرناکې پوښتنې
سره مخامخ شوي وي یو بل ته په بېړه او وارخطايي وکتل او ویې ویل:

واحدي صاحب ته د عدلیې وزارت د معین په توګه ځینې
ضروري کارونه پیدا شول او د هغه وزارت په غوښتنه له جرګې نه وویستل
شو او په ځای یې مستوفي سلطان محمد و ټاکل شو. خو د ملک عبدالرؤف
په اړه هغوی هیڅ ونه شو ویلای او چوپ پاته شول. د شورا مشرهم د دوی
د تلولی حالت په احساس نور څه ونه ویل هدارنګه د خانګل ماما موجودیت
ته پدې جرګه کې چې نوم یې په لست کې نه وُ ډېر و تعجب په سترګه
کتل خانګل د ناویو د وړلو راوړلو له پاره آس ساتلی وُ او په ودونو کې به د ده
آس په کرایه نیول کېده او هغه په هیڅ توګه د داسې مجلسونو نه خانګل د خپله موضوع روښانه کړه ویې ویل:
چې له مدیر محمد یعقوب سره د سرک په غاړه روان وُ چې د جرګې موټر
ودرېد او دی یې هم ورسره موټر ته وخېژاوه نور په هیڅ هم ندی خبر.

بله پوښتنه دا وه چې د جرګې غړي ځانونه قومي بولي او که د حکومت
نمایندګان. دغه پوښتنه بیا هم د هغوی پر مغزو یو بل د روند ګوزار وُ چې
سره ویې لړزول او بیا یو بل ته په کتو شول. د جرګې غړي په خپلو منځو کې
هم یو پر بل نه وو ډاډه او دا اندېښنه ورسره وه چې د دوی په منځ کې به

دغه مباحثو او جدلونو نه یوازې د مجاهدینو د مشرانو ترمنځ بلکې د کرو مجاهدینو او د سیمې داوسېدونکو ترمنځ د مباحثې جدي او خښمېدلې مجلسونه تاوده کړل.

بالاخره د قومي مشرانو پرېکړه ومنل شوه او د جرګې غړو ته د راتلو اجازه ورکړشوه د چک د اسلامي انقلابي شورا غړو د علي خان په کلي کې د جرګې د غړو هرکلی وکړ که څه هم دا هرکلی د زړه د پاسه هرکلی و. خو په کوټه کې د جرګې غړي په عنعنوي توګه برکېنول شول او د شورا غړي او مجاهدینو دروازو ته نژدې ځایونه ونیول. خو بیا هم د جرګې له غړو د ډار او وېرې خپسی منګولې نه وې لېرې کړې اوس هم له دوی سره دا اندېښنه وه چې قوم به څه ورسره کوي او له دوی څخه به د رژیم د ناکردو څه ور انتقام او غچ اخلي، دغه ډار او اندېښنه د دوی له ناستې، حرکاتو، خبرو او کتلو څخه ډېره ښه ښکارېده - دوی ته ځانونه له ټولې مشهورتیا، مخوری او مشرتوب سره ډېر وړوکی ښکارېدل، د مجاهدینو د ایماني پرتم، روحي ډاډ او بې سیاله مقاومت له ارخه دوی ځانونه ډېر پیکه احساسول په تېره دا چې سیمې ته د جرګې د غړو په راتلو مجاهدینو بولرې مانورې ترسره کړې دوی دلاړې په اوږدو کې په ډېر صلابت او قوت سره ځایونه نیولي و او د لارو د واړو غاړو ته ټوپک په لاس او په کارتوسو پټ ولاړو چې دلمر وړانګو به د کارتوسو سره د ټکر پرو ځت یو ډول طلایي وړانګې ښندلې او ځلکونه به یې کول - دوی به یوه ځای کې د بخاري نل په ډېرو او بوټو کې پټ کړی او له پاسه یې ترپال پرې غوړولی و د اسې ښکارېده لکه اوبوس توپ، چې هرڅاړي په لیدو دا خیال کاوه چې یوه داخوړه درونده توپ دی - دوی د الله اکبر په پرله پسې شعارونو او غوږونو د جرګې د غړو هرکلی کاوه او هغوی ته یې د خپل تصمیم او همت ننداره ښوده چې ځینو ځینو به یې له ګواښنه د ګ عمل هم ترسره کړ.



د اسلامي انقلابي شورا رئیس عبدالکبیرخان د جرګې له غړو سره خبرې پیل کړې او لکه چې د دوی وېره او اضطراب یې درک کړی وی په مینه، سړه سینه او په له موسکا ډکه خوله یې د جوړ نا جوړه احوال وروسته خپلې پوښتنې پدې ډول پیل کړې:

د الوتکو نه په اچول شویو کاغذونو کې ټول معرفي شوي کسان نشته د مثال په توګه د محمد انور واحدي ځای تش دی او ملک عبدالرؤف خان هم له تاسې سره نه لیدل کېږي موږ نه پوهېږو چې هغوی ولې ندی راغلي بندیان شوي دي که خوږ نه وی؟

دغه پوښتنې هغوی نور هم تلولی کړل او لکه چې له یوې سختې او خطرناکې پوښتنې سره مخامخ شوي وي یو بل ته په بېړه او وارخطایي وکتل او ویې ویل:

واحدي صاحب ته د عدلیې وزارت د معین په توګه ځینې ضروري کارونه پیدا شول او د هغه وزارت په غوښتنه له جرګې نه وویستل شو او په ځای یې مستوفي سلطان محمد وټاکل شو. خو ملک عبدالرؤف په اړه هغوی هیڅ ونه شو ویلای او چوپ پاته شول. د شورا مشر هم د دوی د تلولی حالت په احساس نور څه ونه ویل هدارنګه د خانګل ماما موجودیت ته پدې جرګه کې چې نوم یې په لست کې نه و ډېر و د تعجب په ستر ګه کتل خانګل د ناوید د وړلو راوړلو له پاره آس ساتلی و او په ودونوکې به د ده آس په کرایه نیول کېده او هم پر هیڅ توګه د داسې مجلسونو نو خانګل په خپله موضوع روښانه کړه ویې ویل: چې له مدیر محمد یعقوب سره د سړک په غاړه روان و چې د جرګې موټر ودرېد او دی یې هم ورسره موټر ته وخېژاوه نور په هیڅ هم ندی خبر بله پوښتنه دا وه چې د جرګې غړي ځانونه قومي بولي او که د حکومت نماینده کان - دغه پوښتنه بیا هم د هغوی په مغزو یو بل د روند ګوزار و چې سره ویې لړزول او بیا یو بل ته په کتو شول - د جرګې غړي په خپلو مخونو کې هم یو پر بل نه وو ډاډه او دا اندېښنه ورسره وه چې د دوی په منځ کې به

حتیٰ د حکومت جاسوس ځای لري نو دغه پوښتنې په ځواب د هر سړه
وخوځېدل او خوځېدل د هرې خبرې یې وڅوولې خو ښاغلی وجدي دا
میړانه وکړه چې د جرګې غړي یې قومي وبلل. وروسته د شورا رئیس او نورو
مشرانو هر یوه پخپل وار خبرې وکړې ویې ویل چې وایه خلقیانو د نژادي توپیر
پر ضد خبرې کولې خو په عمل کې موږ ولیدل چې دوی هزاره د پښتنو
او پښتانه د هزاره ګانو په مقابل کې لمسول. خلقیانو به ویل اولا ګلیا دي وایي
چې انقلاب پر مخ تلونکی هدف نه لري خو په عمل کې دوی غوښتل چې موږ
دوې پېړۍ په شا بوزي او په افغانستان کې د کورنیو جګړو او قبیلوي
اختلافونو زمانه بیا په موږ ووینو او بیا هم دوی اوګلیا دي او د مرتجعینو تاپې
په موږ لګوي اوس نو تاسې ووایاست چې موږ مرتجعین یو که دوی.
د حکومت په ابلاغیه کې موږ ته په اصطلاح عفوه اعلان شوی. عفوه
خو هغو کسانو ته کېږي چې مقصر وي او ګناه یې کړې وي موږ څه
ګناه کړې وه چې زموږ په سیمه سور اور بل کړی شو.
د شورا رئیس جرګې ته مخ واړاوه او څرګنده یې کړه تاسې زموږ مشران
یاست تاسې پخپله په ټول قوم کې وګرځئ او پخپلو سترګو ووینئ چې د
خو موږ بې دفاع او مظلومانو کورونه او کروندې سوځول شوي. زموږ کورنۍ
چور شول. بیا هم زموږ ماشومان نه بلکې زموږ ښځې روی هم د الوتکو په لیدو سره
احساسوي چې د محشر ورځ ورباندې راتلونکې ده. خو موږ به دغه ډول
ستمګرو عناصرو ته چې ځانونو ته خلقیان وایي او په موږ بمونه اوروي او د توپ
ټانک او طیارې له لارې موږ ته خپل زور ښیي د اسلامي جذبې او قومي زوړله
مخې سرټیټوب او انسانیت ووینیو.
موږ فیصله کړې چې د حق او حقیقت په لار کې یو تن هم ژوندی نه پاتې
کېږو نو چې موږ داسې فیصله کړې وي بیا به ولې وسله په ځمکه ږدو بیا به نو



زموږ له پاره سوله او د سولې جرګې څه ارزښت ولري؟ سره له دې هم موږ
مسلمان او پښتانه یو د ملامتی بار په اوږو نشو ګرځولی که چیرې د سولې جرګه
زموږ ملامتي را بر سېره کولی شي را ودې نیسي موږ به پوره حوصله د هغو
خبرو اترو اورېدو ته چمتو یو.... دا وخت د جرګې د غړو خولې په لاړو لمدې
شوې وې او د زړونو درزا یې لږ څه ناسته وه ویې ویل موږ پخپلو سترګو
ولیدل چې حکومت ستاسې کورونه سوځولي او تاسې ته یې زیات تاوان
دار اړولی دی خو تاسې هم صرفه نده کړې سړکونه مو خراب کړیدي او لکه چې
حکومت ادعا کوي ښوونځي او نور اجتماعي مرکزونه مو سوځولي دي.
د شورا رئیس وویل موږ منکر نه یو د جګړې هو ټول خو ولسوال خپله
عسکري چوڼۍ ګرځولې وه چې د جنګ په جریان کې ویران شو او بیا ځې یو
ښوونځی چې غوځله حکومت زموږ پر ضد د یوې اډې په توګه ترې کار
اخیست له مینځه وړل شوی. بله دا چې دا ټول موږ جوړ کړي د قومي
اشرونو له لارې مو جوړ کړي او بیا به یې هم موږ جوړوو. نو موږ
هیڅ اجتماعي مرکز ته زیان ندی رسولی. د برېښنا فابریکه لکه چې تاسې یې
ګورئ فعاله ده او سیمې ته برېښنا ورکوي خو دا په ډاګه وایو چې پر کابل مو برېښنا
قطع کړې. داو بوبند او نور ټول تأسیسات فعال دي.
د یو لږ آزادو مباحثو په نتیجه کې مجاهدینو وغوښتل چې جرګه
خپل نظر څرګند کاندي د جرګې له خوا وویل شول چې قوم ملامته
ندی موږ هیله لرو چې د قوم او حکومت تر منځ سرې اوبه تویې کړو
تاسې موږ ته خپلې غوښتنې او شرطونه څرګند کړئ کومې چې
زموږ له صلاحیته پورې دی هلته به یې فیصله کړو او په نورو به له
حکومت سره وغږیږو. د شورا رئیس له جرګې اجازه وغوښته چې د دغه
مسئلې په اړه د دوی په غیاب کې شورا یوه غونډه وکړي. د دغې ځانګړې

حتی د حکومت جاسوس ځای لري نو د غه پوښتنې په ځواب د بر سېره وخوځېدل او خوځېدل د بري خبرې یې وژوولې خو ښاغلی وجدي دا میړانه وکړه چې د جرګې غړي یې قومي وبلل. وروسته د شورا رئیس او نورو مشرانو هر یوه پخپل وار خبرې وکړې ویې ویل چې وایه خلقیانو د نژادي توپیر پرضد خبرې کولې خو په عمل کې مونږ ولیدل چې دوی هزاره د پښتنو او پښتانه د هزاره کانو په مقابل کې لمسول. خلقیانو به ویل اولا ګلیا دی وایې چې انقلاب پر مخ تلونکی هدف ونه لري خو په عمل کې دوی غوښتل چې مونږ دوې پیړۍ په شا بوزي او په افغانستان کې د کورنیو جګړو او قبیلوي اختلافونو زمانه بیا په مونږ ووېني او بیا هم دوی اوکلیا دی او د مرتجعینو تاپې په مونږ لګوي او س نو تاسې ووایاست چې مونږ مرتجعین یوکه دوی.

د حکومت په ابلاغیه کې مونږ ته په اصطلاح عفوه اعلان شوی. عفوه خو هغو کسانو ته کېږي چې مقصر وي او ګناه یې کړې وي مونږ څه ګناه کړې وه چې زمونږ په سیمه سور اور بل کړی شو.

د شورا رئیس جرګې ته مخ واړاوه او څرګنده یې کړه تاسې زمونږ مشران یاست تاسې پخپله په ټول قوم کې وګرځئ او پخپلو سترګو ووینئ چې د څومره بې دفاع او مظلومانو کورونه او کروندې سوځول شوي. زمونږ کورنۍ چور شول. بیا ځې زمونږ ماشومان نه بلکې زمونږ ځاروی هم دا لوټکو په لیدو سره احساسوي چې د محشر ورځ وربانده راتلونکې ده. خو مونږ به د غه ډول ستمګرو عناصرو ته چې ځانونو ته خلقیان وایي او په مونږ یې نه او روي او د توپ ټانک او طیارې له لارې مونږ ته خپل نظر بنيي د اسلامي جذبې او قومي زوړلو مخې سرټیتوب او انسانیت وروښیو.

مونږ فیصله کړې چې د حق او حقیقت په لار کې یو تن هم ژوندی نه پاتې کېږو نو چې مونږ داسې فیصله کړې وي بیا به ولې وسله په ځمکه کېږدو بیا به نو



زمونږ له پاره سوله او د سولې جرګې څه ارزښت ولري؟ سره له دې هم مونږ مسلمان او پښتانه یو د ملامتي بار په اوږو نشو کړولی که چېرې د سولې جرګه زمونږ ملامتي را بر سېره کولی شي راودې نیسي مونږ به پوره حوصله د هغو خبرو اترو او ربړه و ته چمتو یو.... دا وخت د جرګې د غړو خولې په لاړو لمدې شوې وې او د زړونو درزا یې لرې څه ناسته وه ویې ویل مونږ پخپلو سترګو ولیدل چې حکومت ستاسې کورونه سوځولي او تاسې ته یې زیات تاوان دراړولی دی خو تاسې هم صرف نه کړې سرکونه مو خراب کړیدی او لکه چې حکومت ادعا کوي ښوونځي او نور اجتماعي مرکزونه مو سوځولي دي.

د شورا رئیس وویل مونږ منکر نه یو د چکۍ هو ټل خو ولسوال خپله عسکري چوڼۍ کرځولې وه چې د جنګ په جریان کې وران شو او بیا ځې یو ښوونځي چې څو ځله حکومت زمونږ پرضد د یوې اډې په توګه ترې کار اخیست له مینځه ویړل شوي. بله دا چې دا ټول مونږ جوړ کړي د قومي اشرونو له لارې مو جوړ کړي او بیا به یې هم مونږ جوړوو، نور مونږ هیڅ اجتماعي مرکز ته زیان ندی رسولی. د برېښنا فابریکه لکه چې تاسې یې ګورئ فعاله ده او سیمې ته برېښنا ورکوي خو دا په ډاګه وایو چې پر کابل مو برېښنا قطع کړې. دا وبوبند او نور ټول تأسیسات فعال دي.

د یو لږ آزادو مباحثو په نتیجه کې مجاهدینو وغوښتل چې جرګه خپل نظر څرګند کاندي د جرګې له خوا وویل شول چې قوم ملامته ندی مونږ هیله لرو چې د قوم او حکومت ترمنځ سرې او به تویې کړو تاسې مونږ ته خپلې غوښتنې او شرطونه څرګند کړئ کومې چې زمونږ له صلاحیته پوره دی هدلته به یې فیصله کړو او په نورو به له حکومت سره وغږېږو. د شورا رئیس له جرګې اجازه وغوښته چې د دغه مسئلې په اړه د دوی په غیاب کې شورا یو غونډه وکړي. د دغې ځانګړې

غونډې حق د جرګې غړو ته هم حاصل وي چې بېله غونډه وکړي. په دې کوټه کې کابو یو ساعت خبرې وشوې او لومړی شرط دا و چې ندې شوچې نړهوږ بندیان راخوشې کړي که چېرې يې نړهوږ بندیان راخوشې کړل بیا به نورو خبرو ته هم سره کېښنو.

شورا دا هم هیله لرله چې ټوله جرګه به کابل ته نه ځي خپنې به یې له قوم سره پاته کېږي خو د جرګې غړي وېرېدل چې کېدای شي مجاهدین يې د برمته کولو خیال لري د همدې وېرې له امله ټول غړو ته د تللو اجازه ورکړه شوه.

جرګه کابل ته ورسېده د کورنیو چارو په وزارت کې د پولیسو قوماندان علي شاه پیمان چې جرګه هم د ده د ابتکار له مخې جوړه شوې وه د هغوی هرکلی وکړ. هغه په تعجب کې وچې د جرګې غړي روغ جوړ د ده مخې ته ناست دي او یوه ته هم کوم زیان نه دی رسېدلی. ده پر تلوسه لرله چې د جرګې له جریان څخه خبر شي همدا وچې اسماعیل خان ما یار د جرګې په نماینده ګی د جرګې د فعالیت جریان په مفصله توګه ورانده کړ چې علي شاه پیمان یې مهم ټکي یادداشت کول. اسمعیل خان دېر دلایل لرل چې قوم ملامته نه دی بلکې له دې حالت سره ولسوالۍ او د خلقي حکومت نورو مامورینو د خلقي ګوند غړیو او د انقلاب د دفاع د کمېټو غړیو ناخاخ کړیدی.

علي شاه پیمان وویل: ما غوښتل جرګه له امین صاحب سره وګوري خو داسې ښکاري چې امین صاحب له وردګو خپه دی....

مایار په احساساتي بڼه د پیمان خبرې وپرې کړې او په ماته کوره پښتو یې وویل:

... فرق نه کوي امین خپه کېږي کې ترو کی، کې د هر څه قوم مهم دی وطن مهم دی مونږ غواړو خدای پدې قوم ورحم وکړي او حکومت مهربانی



وکړي...

پیمان موسکی شو خپلې خبرې یې ترمیم کړې ویې ویل وبخښئ ما لکه چې خپل مطلب سم ونشو ویلی امین صاحب له وردګو نه خپه ندی وردګ ډېر ورباندې ګران دی ناز وربا ندې لري.

بیا یې وویل ربینتیا چې قوم ملامت ندی ما ته دوه ولسوال وروڼه راغلل او را ته یې وویل: چې نړهوږ وروڼه ورودګو شهید کړیدی. خو ما ورته وویل شهید نه بلکې مردار شویدی - پیمان وویل ما څکه خپل ولسوال مردار شوی وګاڼه چې هغه د وردګو پر پښتو او غیرت باندې ملنډې وهلې دی زه هم پښتون یم که چېرې زما په ولس کې داکار شوی وای او زما خلک په زور په موټرونو کې د جګړې له پاره استول شوی وای ما به هم د وردګو په څېر اقدام کاوه.

پیمان د خپلو مخصوصو اکټونو په ملتیا کله د نرمۍ او د پستۍ غاړې او کله بیا ګواښونکې او څخې خبرې کولې پدې کې د ټیلفون زنګ راغی د هغه له خبرو داسې څرګنده شوه چې مقابل لوری یې د مرکزي قوا وو قوماندانی ده چې قوماندان یې د وردګو د ټنګي او سېد ونکی محمد دوست دی.

پیمان په ټیلفون کې په نسبتاً جدي بڼه مقابل لوري ته وویل نه نه، کوره د سولې جرګه دا ده زما سره ناسته ده، دوی له قوم سره مفاهمه کړې د سولې امید نو هم زیات شوی تاسې عملیات مه کوئ د وردګو مسئله ما ته پرېږدئ زه د وردګو ضامن یم وردګ ښه خلک دی.

دا معلومه نشوه چې د پیمان دا ټیلفوني مرکه مصنوعي وه که حقیقي.

پیمان بیا وروځی اوا ورېي یو ځای وغوړځولې غاړې یې تازه کړ چپه سترګه یې لږ چوغه کړه د خولې ښې وښکی یې بوې خواته کوږ کړ ویې ویل د هغه اعتماد له مخې چې دې یې د وردګو د هېوادپالنې پر روحیه لرم که چېرې

غوندي حق د جرګې غړو ته هم حاصل وي چې بيله غونډه وکړي. په دې کوټه کې کابو يو ساعت خبرې وشوې او لومړی شرط دا و چې ندې شو چې زموږ بنديان راخوشې کړي که چېرې يې زموږ بنديان راخوشې کړل بيا به نورو خبرو ته هم سر کېښېږو.

شوراهم هيله لرله چې بېرته جرګه به کابل ته نه ځي ځينې به يې له قوم سره پاته کېږي خو جرګې غړي ويرېدل چې کنې مجاهدين يې د برمته کولو خيال لري د همدې وېرې له امله يې لوغړو ته د تللو اجازه ورکړې شوه.

جرګه کابل ته ورسېده د کورنيو چارو په وزارت کې د پوليسو قومندان علي شاه پيمان چې جرګه هم د ده د ابتکار له مخې جوړه شوې وه دهغوی هرکلی وکړ. هغه په تعجب کې و چې د جرګې غړي روغ جوړ د ده مخې ته ناست دي او يوه ته هم کوم زيان نه دی رسېدلی. ده پر تلوسه لرله چې د جرګې له جريان څخه خبر شي همدا و چې اسماعيل خان ماياړ د جرګې په نمايندګۍ د جرګې د فعاليت جريان په مفصله توګه وړاندې کړ چې علي شاه پيمان يې مهم ټکي يادداشت کړل. اسمعيل خان ډېر دلايل لرل چې قوم ملامته نه دی بلکې له دې حالت سره ولسوالۍ او د خلقي حکومت نور مامورين و د خلقي کوند غړيو او د انقلاب د دفاع د کميټو غړيو خامخ کړيدی.

علي شاه پيمان وويل: ماغوښتل جرګه له امين صاحب سره وګوري خوداسې ښکاري چې امين صاحب له ورډګو خپه دی....

ماياړ په احساساتي بڼه د پيمان خبرې ورپرې کړې او په ماته کوره پښتو يې وويل:

... فرق نه کوي امين خپه کېږي کې تر څو، کې د هر څه قوم مهم دی وطن مهم دی مونږ غواړو خدای پدې قوم ورحم وکړي کې حکومت مهربانی



وکړي...

پيمان موسکی شو خپلې خبرې يې ترميم کړې ويې ويل وبخښئ ما لکه چې خپل مطلب سم ونشو ويلی امين صاحب له وردګو نه خپه ندی وردګ ډېر ورباندې ګران دی نازورباندې لري.

بيا يې وويل ربښتيا چې قوم ملامت ندی ماته دوه ټل شوی ولسوال وروته راغلل او راته يې وويل: چې زموږ ورور ورډګو شهيد کړيدی. خو ما ورته وويل شهيد نه بلکې مردار شويدی. پيمان وويل ما څکه خپل ولسوال مردار شوی وګڼه چې هغه د وردګو پر پښتو او غيرت باندې ملنډې وهلې دی زه هم پښتون يم که چېرې زما په ولس کې داکار شوی وای او زما خلک په زور په موټروکې د جګړې له پاره استول شوي وای ما به هم د وردګو په څېر اقدام کاوه.

پيمان د خپلو مخصوصو اکټونو په ملتيا کله د نرمۍ او د پستۍ غاړې او کله بيا ګواښونکي او شخصي خبرې کولې پدې کې د تيلفون زنګ راغی دهغه له خبرو داسې څرګنده شوه چې مقابل لوری يې د مرکزي قواوو قوماندانی ده چې قوماندان يې د وردګو د تنګي اوسېدونکی محمد دوست دی.

پيمان په تيلفون کې په نسبتاً جدي بڼه مقابل لوري ته وويل نه، نه، کوره د سولې جرګه دا ده زما سره ناسته ده، دوی له قوم سره مفاهمه کړې د سولې اميد نور هم زيات شوی تاسې عمليات مه کوئ د وردګو مسئله ماته پرېږدئ زه د وردګو ضامن يم وردګ ښه خلک دي.

دا معلومه نشوه چې د پيمان دا تيلفوني مرکه مصنوعي وه که حقيقي.

پيمان بيا وروڅو اوا وړې يوځای وغوځولې غاړې يې تازه کړ چېپه سترګه يې لېږ چوغه کړه د خولې بنې وښکی يې بوې خواته کوږ کړ ويې ويل د هغه اعتماد له مخې چې زه يې د وردګو د هېواد پالنې پر روحيه لرم که چېرې

زما په اختيار کې وای ما به وردکو ته ويلي وای چې ځانته جلا جمهوريت جوړ کړی خوزماله واکه وتلی خبره ده خو هغه څه چې زماله واکه پوره دی زه وردکو ته دهغې لوز ورکوم چې د بنديانو په خوشې کولو کې به ورسره مرسته وکړم کوم بنديان چې له ماسره دی دهغوی په باب خوهيڅ خبره نشته.

خوله وردکو نه زما غوښتنه داده چې خپل سپين ږيري دې پرانيزي خپل سرکونه دې جوړکړي ولسوالي دې پخپله فعاله کړي هرڅوک چې د دوی خوښ وي هغه دې ولسوال وټاکي او ولسوال به د قوم مشرانو لکه والي اسمعيل خان او ابکل ته مسئوليت ولري - ترڅو چې پرحکومت دوردکو اعتمادنه وي راغلی ترهغو دې خپل اخيستل شوي ټوپک حکومت ته نه تحويلوي او غوښتنه يې وکړه چې جرګه يوځل بيا قوم ته ورشي. او دی به ترهغې دوردګو دبنديانو لستونه او نورکار او بار برابرکړي.

پدې دول جرګه بيا وردکو ته لاړه. خوداځل جرګې هيڅ کومه نوی خبره له خان سره نه وه وړې مجاهدينو يوځل بيا هغوی ته خپله پخوانی خبره تکرارکړه چې لومړی دې زموږ بنديان خوشې کړی شي بيا به مونږ خپلې نورې غوښتنې وړاندې کړو.

جرګه چې له وردکو بېرته ستنه شوه بيا يې طبق معمول علي شاه پيمان له ټول جريان څخه خبرکړ هغه ظاهراً دلستونو د برابرولو خبره بيا تکرارکړه پدې دول چې پيمان به د کورنيو چارو د وزارت لستونه برابروي او علي خان به کوښښ کوي چې دا کسا د داړو نظامي او ملکي برخو څخه د بندې شويو وردکو لستونه برابرکړي.

جرګې مجاهدينو ته د جريانا تو په اړه يو ليک واستاوه او له دوی څخه يې غوښتي وو چې دوی هم د بنديانو لست برابرا وجرګې ته يې واستوي. د دوی د ليک په رسيد وجاهدينو دا دول ځوابيه ليک ورواستاوه،



د سولې د جرګې محترمو غړو!

له يوې خوا ستاسې ترنظر لاندې د سولې خبرې روانې دي او له بلې خوا د کابل او دګران هېواد په بېلو بېلو ځايونو کې د وردکو ګرفتارې روانې دي دغه کارموږ ته ويښوده چې حکومت د چل او دسيسې فکر لري.

تاسې ته معلومه ده چې د وردکو زيات خلک د ماموږ-منصبدار- ښوونکی- کارګر- سوداګر او نورو په بڼه د هېواد په بېلو بېلو برخو کې ژوند کوي او له بلې خوا د وردکو خلکو په يو پراخه سيمه کې استوګنه لري چې هغوی ته په اوسنيو شرايطو کې زموږ لاسونه نشي رسېدی نو د ټولو وردکو د بنديانو د لست جوړول زموږ له پاره امکان نه وتلی خبره ده-که چېرې حکومت په رښتيا سره پخپله اعلاميه کې صادق وي او ښه نيت ولري نو بيا به زموږ شرايط چې د بنديانو-خوشې کول او په پېشنهاد شوې چوکاټ کې د خبرواترو له جريان څخه عبارت دي سخت کارندی- د وردکو د بنديانو شمېر حکومت ته پوره څرګند دی نو حاجت نشته چې خبرې اوږدې شي او تاسې هم تګ او راتګ وکړئ موږ بل څه نه غواړو يوازې دومره چې حکومت پخپله وعده وفاوکړي.

دچکې د سپين ږيرو له خوا

۱۴ / ۶ / ۱۳۵۸

لدې سره د جرګې غړو د ده بوريو په جومات کې خپله غونډه راوبلله او څه نوي وکسانو هم په غونډه کې برخه واخيسته.

مايار د غونډې غړو ته ټول جريان تکرارکړ. داوخې د موسئ خېلو اوسېدونکي داکسا غړی عمر وردګ چې د بېرشيک زلمی و او د نوی مود ملت پتلون يې اغوستی و او بېتلې طلايې وښتانو يې د يوې پېغلې له -

ژما په اختيار کې وای ما به ورډکو ته ويلې وای چې ځانته جلا جمهوريت جوړ کړی خو زما له واکه وتلې خبره ده خو هغه څه چې زما له واکه پوره دی زه ورډکو ته د هغې لوز ورکوم چې د بنديانو په خوشې کولو کې به ورسره مرسته وکړم کوم بنديان چې له ما سره دی د هغوی په باب خو هېڅ خبره نشته.

خوله ورډکو نه زما غوښتنه داده چې خپل ښوونځي دې پرانيزي خپل سرکونه دې جوړ کړي ولسوالي دې پخپله فعاله کړي هر څوک چې د دوی خوښ وي هغه دې ولسوال وټاکي او ولسوال به د قوم مشرانو لکه والي اسمعيل خان او ابکل ته مسئوليت ولري - تر څو چې پر حکومت د ورډکو اعتماد نه وي راغلی تر هغو دې خپل اخيستل شوي ټوپک حکومت ته نه تحويلوي او غوښتنه يې وکړه چې جرګه يو ځل بيا قوم ته ورشي. او دی به ترهغې د ورډګو د بنديانو لستونه او نور کار او بار برابر کړي.

پدې ډول جرګه بيا ورډکو ته لاړه - خو دا ځل جرګې هېڅ کومه نوې خبره له ځان سره نه وه ورې مجاهدينو يو ځل بيا هغوی ته خپله پخوانی خبره تکرار کړه چې لومړی دې زمونږ بنديان خوشې کړی شی بيا به مونږ خپلې نورې غوښتنې وړاندې کړو.

جرګه چې له ورډکو بېرته ستنه شوه بيا يې طبق معمول علي شاه پيمان له ټول جريان څخه خبر کړ هغه ظاهراً د لستونو د برابرولو خبره بيا تکرار کړه پدې ډول چې پيمان به د کورنيو چارو د وزارت لستونه برابروي او علي حسان به کوښښ کوي چې د اکسا د دوارو نظامي او ملکي برخو څخه د بندي شويو ورډکو لستونه برابر کړي.

جرګې مجاهدينو ته د جريانا تو په اړه يو ليک واستاوه او له دوی څخه يې غوښتنه وکړه چې دوی هم د بنديانو لست برابر او جرګې ته يې واستوي. د دوی د ليک په ځواب کې رسېدو مجاهدينو داډول ځوابيه ليک ورواستاوه.



د سولې د جرګې محترمو غړو !

له يوې خوا ستاسې ترنظر لاندې د سولې خبرې روانې دي او له بلې خوا د کابل او د ګران هېواد په بېلو بېلو ځايونو کې د ورډکو ګرفتارۍ روانې دي دغه کارمونږ ته ونبوده چې حکومت د چل او د سيسې فکر لري.

تاسې ته معلومه ده چې د ورډکو زيات ترخلک د مامورين منصبدار ښوونکي - کارګر - سوداګر او نور وو په بېله د هېواد په بېلو بېلو برخو کې ژوند کوي او له بلې خوا د ورډکو خلکو په دې پراخه سيمه کې استوګنه لري چې هغوی ته په اوسنيو شرايطو کې زمونږ لاسونه نشي رسېدی نو د ټولو ورډکو د بنديانو د لست جوړول زمونږ له پاره امکان نه وتلې خبره ده - که چېرې حکومت په رښتيا سره پخپله اعلاميه کې صادق وي او ښه نيت ولري نو بيا به زمونږ شرايط چې د بنديانو - خوشې کول او په پېشنهاد شوي چوکاټ کې د خبرو اترو له جريان څخه عبارت دی سخت کارندی - د ورډکو د بنديانو شمېر حکومت ته پوره څرګند دی نو حاجت نشته چې خبرې اوږدې شي او تاسې هم تګ او راتګ وکړئ مونږ بلخه نه غواړو يوازې دومره چې حکومت پخپله وعده وفا وکړي.

د چک د سپين بېر وله خوا

١٤ / ٦ / ١٣٥٨

لدې سره د جرګې غړو د ده بوريو په جومات کې خپله غونډه راوبلله او څه نوي کسانو هم په غونډه کې برخه واخيستله.

مايار د غونډې غړو ته ټول جريان تکرار کړ. دا ونځی د موسۍ خېلو اوسېدونکی دا کسا غړی عمر ورډک چې د ډېرشيک زلمی و او د نوی موډ شلث پتلون يې اغوستی و او ښيتلي طلايې ويښتانو يې د يوې پېغلې له -

بشپړي جبهه يي جګړي اوعمومي پاڅون بڼه لرله ، ترڅو چي دمجاهدينو ترتسلط لاندي سيمو حدودهم معلوم وو- بله داچي په دغه قيام کي دهيڅ يوه سياسي جريان دخالت نه ليدل کيده بلکي ديوه خود-جوشه حرکت په توګه دسيمي دقومي مشرانو ترقيادت لاندي هغه ته زمينه برابره شوه په لاړواچول شو ، اوج ته ورسيد او دوام يي ومومند-له همدي ځايه وه چي دقيام اداره دولسي قيادت په واک کي وه او يوه داسي متحده اداره يي رامنځ ته کړي وه چي په باورسره ويلي شو چي دحکومتونو په نسبت په حالاتو ډيره حاکمه او يوه مثالي امنيت يي ټينګ کړي وو .

خو کله هم چي دپيښور دګوندو نو سيوري په سيمه وغوړځيده او دسياسي اقتدار لوبي پيل شوي نو ددغه پاڅون اصيل اهداف ، لاسته-راوړني ، پروګرامونه او اميدونه هم ورسره تاله ترغه شول او يو پاڅيدلي مقاوم ، متحد او يوه موټي قوم په ګوندونواو ګونديو وويشل شو.

ښکاره خبره ده چي دغه ليکنه دارقامو او موادو له مخي ددغه قيام بشپړتاريخ او پيښليک نشي ګڼل کيدي او نه هم دولس دجهادي قهرمانيو، حماسو او قربانيو انځورګري کولي شي بلکي يواځي ددغه قيام په رابطه پرحقايقو او واقعيتونو ولاړديوه شاعرانه او پرهر ژلي احساس يوتت تصوير او نيمګړي محصول دي-دومره چي ليکوال خپل تأثرات په ادبي رنګ کي غوټه کړيدي . داهم بايد ووايو چي دغه ليکنه دقلم مجلي په بيلابيلو ګڼو کي تر ځانګړو عنوانو لاندي خپره شويده او اوس همغه په «قلم» کي خپورشوي متن بيله دي چي دوخت دبدلون او نور و تغيراتو له مخي څه لاسوهنه پکي وشي کټ-مټ خپريږي- ځکه زه غواړم داليکنه په يوه .معينه زماني مقطع کي زما دجذباتواو انګيرنود محصول په توګه لاس نه خوړلي پاتي شي .

مينه او درنښت
ننګيال



# ... اوګولی وچليدي !!!

د افغانستان دجهاد تاريخ که له يوې خوا غمرلړلی تاريخ دی او ډير لړلی خولې بلې خوا وياړلی تاريخ دی او سرلوړی . د روسي وحشي ښکيلاک او د دوی د بريځوپه وړاندي دافغانستان دمسلمان او اتل اولس پاڅون يو حيرانوونکی پاڅون دی او هيښ کوونکی . د باطل ديوه وسله وال ځواکمن او په ځان مغرور وحشي ښکيلاک په مخه کې د تش لاسو خو د حق په مينه مستو مؤمنانو راولاړيدنه اودريدنه اوبيا په دې وحشي ځواک هغه بريالي کيدنه د ټولی دنيا د تعجب او حيرانتيا وړ ده .

رښتيا هم دهيواد په هره برخه کې ددې پاڅېدنې پيل او ابتدا حالبه ده، د ايمان او ارادي په مخه بنا ولاړه ده او د حق د نه فنا کيدونکي نوړ په رڼا کې پر مختللي او په دې وسيله زموږ محلی پاڅونونه ملی او هيواد وال شوي او د باطل په مقابل کې يې يو ټينګ صف او " بنيان مرصوص " جوړ کړی دی .

وپښتانو سره سیالي کوله او پدې سیالي کې یوځه وړاندې هم د روشنفکرانو (۱) په نمایندګی پداسې حال کې چې ژاولې یې په خوله کې وې داکسا په زور او طاقت خبرې وکړې او وردګ یې سخت محکوم کړل ده له خپلو سترګو نه د سردزمو وپښتانو دلیرې کولوله یوه جانانه حرکت سره دوځوا او سترګو په بېلوبېلو اشارو ویل: وردګو له بشریت سره خیانت کړېدی د پرسته جنایتکاران دی چې د افغانستان پوزه یې پرې کړې ده - خارجي اتباع یې وژلي - جنایت وردګوکړې خو تور او تومت یې په خلقي دولت وړتپل شویدی.

ده بیا د ناز، کرشمو او جدیت په کټه انداز کې زیاته کړه: داخبره دروغ ده چې د وردګو بندیان به خوشې کېږي - جنایتکاران څوک نه خوشې کوي وردګو داسې جنایتونه کړېدی چې که حکومت د خپلو نازولو سترګو ته ونه ګوري د وردګو ټوله سیمه به په بل مخ واړوي - همدغه څونازولي دي چې پرحکومت ګران دي او د هغوی په خاطر وردګو ته صبر کوي خو دا حوصله دېردوام نشي کولای.

مایار د عمرخبرې تر هغه ځایه چې وردګ یې جنایتکاران بلل رد کړې او بیوځل بیا یې د قوم دلایل بیان کړل چې دغه ټول حالت په قوم تپل شویدی او هغه مجبور شوی چې وسلې ته لاس کړي.

بیا یې شاه محمود او نعیم ته چې له پیمان سره لیدنه اوکتنه د دوی په وسیله برابره ده مخ وړواړاوه ویې ویل: د عمرجان په خبرو کې ځینې داسې ټکی راپیدا شول چې اصلاً د جرګې د دوام ضرورت له منځه وړي هیله ده پیمان صاحب نورمونږ معاف کړي. شاه محمود او نعیم د عمرخبرې رد کړې او د پیمان په اړه یې وویل چې وردګو ته د ده نیت سنه دی هغه غواړي چې داسې یوه روغه وشي چې د دواړو خواو حیثیت پکې خوندي شي



خو عمر بیاله سترګو نه د سر د وپښتانو دلیرې کولو په یوه اتومات حرکت سره په خبرو کې مداخله وکړه ویې ویل: سوله امکان نلري ځکه چې د جرګې غړي او مشران د زړه له اخلاصه پدې کار کې برخه نه اخلي په جرګه کې داسې کسان شته چې یو وروړ یې دلته په جرګه کې ناست دی او بل وروړ یې د اشرارو (مجاهدینو) قوماندان دی. ده د مثال په توګه وویل: حاجي خدایدادخان دلته دی او وروړ یې مدیرغمی په جغتو کې د اشرارو (مجاهدینو) مشرتوب کوي.

هدارنګه زمونږ د اونخي یو دګروال دلته ناست دی چې سید حکیم نومېږي زه یې سنه پېژنم لاس یې داشارې په توګه هغه ته ونیو او پدې جرګه کې غړیتوب لري مګر وروړ یې په اونخي کې زمونږ پرضد په جګړه کې بوخت دی.

جرګې بیا له پیمان سره ولیدل خو پیمان داځل هغه پخوانی پیمان نه ؤ، په غوسه ناک د د غږ یې جرګې ته وویل: تاسې له جرګې نه بهرځې د چین اوشوروي ترمنځ د کشالو غوندې یوه مساله جوړه کړې ده تاسې اصلاً دا مساله نه حل کوئ او لا یې غوړځوئ او ددې له پاره چې د وردګو په باب خپل سنه نیت ثابت کاندې او وبنیې چې پدې مساله کې څومره ترڅشار لاندې دی خپل یاور یې راوغوښت او هغه ته یې سوګند ورکړ چې څو شیبې د مخه د مرکزي قواوو قوماندان محمد دوست په تېلفون کې څه وویل؛ یاور په خدای سوګند یاد کړ چې د مرکزي قواوو قوماندان وویل، چې چون نور وردګو ته حوصله نشو کولی د عملیاتو پلان تر لاس لاندې لرو.

پیمان د دغه شهادت له اورېدو وروسته وویل: چې د سولې په

وپښتانو سره سیالي کوله او پدې سیالي کې یوځه وړاندې هم و، د روښنفکرانو (!) په نمایندګی پداسې حال کې چې ژاولي یې په خوله کې وی داکسا په زوراو طاقت خبرې وکړې او ورډګ یې سخت محکوم کړل ده له خپلو سترګو نه د سردنړمو وپښتانو دلیرې کولوله یوه جانانه حرکت سره دوړځو او سترګو په بېلو بېلو اشارو ویل: ورډګوله بشریت سره خیانت کړېدی د پرستو جنایتکاران دی چې د افغانستان پوزه یې پرې کړې ده - خارجي اتباع یې وژلي - جنایت ورډګو کړې خو تور او تومت یې په خلقي دولت وراچول شویدی.

ده بیا د ناز، کرشمو او جدیت په ګډه انداز کې زیاته کړه: داخبره دروغ ده چې د ورډګو بندیان به خوشې کېږي - جنایتکاران څوک نه خوشې کوي ورډګو داسې جنایتونه کړېدی چې که حکومت د خپلو نازولو سترګو ته ونه ګوري دورډګو ټوله سیمه به په بل مخ واړوي - همدغه څونازولي دی چې پرحکومت ګران دي او دهغوی په خاطر ورډګو ته صبر کوي خو دا حوصله دپردوام نشي کولای.

مایار دعمرخبرې ترهغه ځایه چې ورډګ یې جنایتکاران بلل رد کړې او بوځل بیا یې دقوم دلایل بیان کړل چې دغه ټول حالت په قوم تپل شویدی او هغه مجبور شوی چې وسلې ته لاس کړي.

بیا یې شاه محمود او نعیم ته چې له پیمان سره لیدنه اوکتنه د دوی په وسیله برابرېده مخ ورواړاوه وې ویل: دعمرجان په خبرو کې ځینې داسې ټکی راپیدا شول چې اصلاً دجرګې د دوام ضرورت له منځه وړي هیله ده پیمان صاحب نورموږ معاف کړي. شاه محمود او نعیم دعمرخبرې رد کړې او د پیمان په اړه یې وویل چې ورډګو ته د ده نیت ښه دی هغه غواړي چې داسې یوه روغه وشي چې د دواړو خواو حیثیت پکې خوندي شي.



خو عمر بیا له سترګو نه د سردو پښتانو دلیرې کولو په یوه اتومات حرکت سره په خبرو کې مداخله وکړه وې ویل: سوله امکان نلري ځکه چې د جرګې غړي او مشران د زړه له اخلاصه پدې کار کې برخه نه اخلي په جرګه کې داسې کسان شته چې یو ورور یې دلته په جرګه کې ناست دی او بل ورور یې د اشرارو (مجاهدینو) قوماندان دی. ده د مثال په توګه وویل: حاجي خدایدادخان دلته دی او ورور یې مدیرغمی په جغتو کې د اشرارو (مجاهدینو) مشرتوب کوي.

هدارنګه زموږ د اونځي یو ډګروال دلته ناست دی چې سید حکیم نومېږي زه یې سبه پېژنم لاس یې داشارې په توګه هغه ته ونیو او پدې جرګه کې غړیتوب لري مګر ورور یې په اونځي کې زموږ پرضد په جګړه کې بوخت دی.

جرګې بیا له پیمان سره ولیدل خو پیمان داځل هغه پخواني پیمان نه ؤ، په غوسه ناک د دغږ یې جرګې ته وویل: تاسې له جرګې نه ښځي د چین او شوروي ترمنځ د کشالو غوندې یوه مسأله جوړه کړې ده تاسې اصلاً دا مسأله نه حل کوئ اولا یې غوړېځوئ او ددې له پاره چې دورډګو په باب خپل ښه نیت ثابت کاندي او وښیي چې پدې مساله کې څومره ترفشار لاندې دی خپل یاور یې راوغوښت او هغه ته یې سوګند ورکړ چې څوشېبې د مخه دمرکزي قواوو قوماندان محمد دوست په ټیلفون کې څه وویل، یاور په خدای سوګند یاد کړ چې دمرکزي قواوو قوماندان وویل: چې موږ نور ورډګو ته حوصله نشو کولی دعملیاتو پلان تر لاس لاندې لرو.

پیمان د دغه شهادت له اورېدو وروسته وویل: چې د سولې په

جریان کې وردګو خپلې پښې لا اوږدې کړې. په میدان، نرخ کې یې بې امنیتي لا زیاتې کړې دی حتیٰ په پنجشیر کې هم داشرارو - (مجاهدینو) ځینې ډلې د وردګو په کډون تخریبکاري کوي.

ده له چاسره په تیلفون کې له یوې لنډې مرکې وروسته زیاته کړه موږ دقیق اطلاعات ترلاسه کړیدي.

د جرګې غړو هغه ته ګیله وکړه چې د جرګې په جریان کې د جرګې دوه تنه غړي مستوفي سلطان محمد او عبدالقدیر حکومت نیولي دا کار د جرګې له اصولو سره د بېمنی معنا نلري؟

بیان وویل: د عبدالقدیر جرم ډېر سخت دی خو دهغه بل په برخه کې به دادی ستاسې په مخ کې پوښتنه وکړم. تیلفون یې راواخیست او وې ویل، که چېرې د صوفي سلطان محمد...

د جرګې غړو یې خبره ورپرې کړه چې صوفي نه بلکې مستوفي سلطان محمد ...

ده خپلو تیلفوني خبروته دوام ورکړ، که چېرې تاسو پدې ورځو کې د مستوفي سلطان محمد په نامه کوم وردګ نیولی وي موضوع ژر ماته راولېږئ وروسته څرګنده شوه چې هغه نه و نیول شوی.

د هېواد پیاوړی لیکوال عبدالجلیل وجدي چې پخپله د دغه جرګې غړی و، پدې اړه داسې لیکي:

«... له بلې خوا جرګې زما په غیاب کې یوه بله غونډه کړې وه د دې غونډې په نتیجه کې داسې فیصله شوې وه چې دا جرګه محدوده ده باید د جرګې غړي زیات شي او هغه باید په بېلو بېلو کروپونو ووېشل شي او د وردګو نورو برخو لکه جغتو، اوڼخي، شنیز او شیخ آباد ته واستول شي. پدې موده کې عبدالقدیر چې د جرګې یو غړی و بندي شوی و او په جرګه کې زما غیاب نورو غړو



هم داسې اشتباه پیدا کړې وه.

مستوفي سلطان محمد د شپې په ۸ بجې خپل ورور رحیم زما د حال احوال اخیستلو له پاره رالیږلی و او ما ته یې وویل: چې د جرګې یو غړی عبدالقدیر یې بندي کړی ته او مستوفي دواړه په خطر کې یاست. ده وویل چې سبا به جرګه بیا په نهو بجو د ده بورۍ په جامع جومات کې راغونډېږي خو مستوفي نظریه داده چې د نهو بجو نه دمخه د اوو بجو په شاوخوا کې له تاسره د میرویس میدان په یوه برخه کې وګورې که چېرې حالات خراب وي نو سره به و پوهېږئ او د فرصت نه په استفادې سره به خپلې پښې وباسئ!

سهار د اوو بجو نه د مخه زه میرویس میدان ته ورسېدم په سختو اختناقي شرایطو کې د ساعتونو د انتظار کول هغو کسانو ته معلومېدای شي چې د یوه چېپې نظامي حکومت تر تېغ لاندې ژوند کوي. له اوو بجو تر اته نیمو بجو پورې ما د لته انتظار وېوست پدې دومره موده کې ډېرو کسانو زه پوره او کتلم او ما هم دوی زیاتره د حکومت جاسوسان و. او یا هغه کسان و و چې زه د یو خطرناک جاسوس په بڼه ورته ښکارېدم د انتظار شېبې یوه په بله پسې سختېدلې او خطرناکې کېدلې، د مستوفي سلطان محمد پته ونه لګېده زه ته مې ورسېده چې دغه سړی یې نیولی دی خو وروسته معلومه شوه چې هغه یې نه و نیولی او بالاخره دغه معما باندې څوک پوه نشول.»

د جرګې د غړو له خوا د یولړ مباحثو وروسته داسې فیصله وشوه چې جرګه دې بېلو بېلو سیمو ته په بېلو بېلو کروپونو کې لاړه شي چک ته هیڅ هم زړه نه شو ښه کولی ځکه دا ځل چک ته تلل د جرګې د غړو په نزد له سره د تېرېدلو معنی ورکوله ځکه دوی له ځان سره بېله خپلې ناکامې څخه د وړلو هیڅ نه لرل. حکومت لکه چې پخپله طرحه او پلان کې خپله ناکامي

جریان کې ورډکو خپلې پښې لا اوږدې کړې. په میدان، نرخ کې یې بې امنیتي لا زیاتې کړې دي حتی په پنجشېر کې هم د اشرارو - (مجاهدینو) ځینې ډلې د ورډکو په کډون تخریبکاري کوي.

د له چا سره په تېلفون کې له یوې لندې مرکې وروسته زیاته کړه مونږ دقیق اطلاعات تر لاسه کړېدي.

د جرګې غړو هغه ته ګیله وکړه چې د جرګې په جریان کې د جرګې دوه تنه غړي مستوفي سلطان محمد او عبدالقدیر حکومت نیولي دا کار د جرګې له اصولو سره د دښمنۍ معنا نلري؟

پیمان وویل: د عبدالقدیر جرم ډېر سخت دی خو دهغه بل په برخه کې به دادی ستاسې په مخ کې پوښتنه وکړم. تېلفون یې راواخیست او ویې ویل، که چېرې د صوفي سلطان محمد...

د جرګې غړو یې خبره ورپرې کړه چې صوفي نه بلکې مستوفي سلطان محمد...

ده خپلو تیلفوني خبرو ته دوام ورکړ، که چېرې تاسو پدې ورځو کې د مستوفي سلطان محمد په نامه کوم ورډک نیولی وي موضوع ژر ماته راولېږئ وروسته څرګنده شوه چې هغه نه وو نیول شوی.

د هېواد پیاوړي لیکوال عبدالجلیل وجدي چې پخپله د دغه جرګې غړی و پدې اړه داسې لیکي:

«... له بلې خوا جرګې زما په غیاب کې یوه بله غونډه کړې وه د دې غونډې په نتیجه کې داسې فیصله شوې وه چې د اجرګه محدوده ده باید د جرګې غړي زیات شي او هغه باید په بېلو بېلو ګروپونو ووېشل شي او د ورډکو نورو برخو لکه جغتو، اونغي، شنیز او شیخ آباد ته واستول شي. پدې موده کې عبدالقدیر چې د جرګې یو غړی و بندي شوی و او په جرګه کې زما غیاب نورو غړو



هم داسې اشتباه پیدا کړې وه.

مستوفي سلطان محمد د شپې په ۸ بجو خپل وروړ رحیم زما د حال احوال اخیستلو له پاره رالېږلی و او ما ته یې وویل: چې د جرګې یو غړی عبدالقدیر یې بندي کړی ته او مستوفي دواړه په خطر کې یاست. ده وویل چې سبا به جرګه بیا په نهو بجو د ده بورې په جامع جومات کې راغونډېږي خو مستوفي نظریه داده چې د نهو بجو نه دمخه د اوو بجو په شاوخوا کې له تا سره د میرویس میدان په یوه برخه کې وګورې که چېرې حالات خراب وي نو سره به وپوهېږئ او د فرصت نه په استفادې سره به خپلې پښې وباسئ!

سهار د اوو بجو نه دمخه زه میرویس میدان ته ورسېدم پېښتو اختناق شرایطو کې د ساعتونو د انتظار اګول هغو کسانو ته معلومېدای شي چې د یوه چېپې نظامي حکومت تر تېغ لاندې ژوند کوي. له اوو بجو تر اته نیمو بجو پورې ما د لته انتظار وبویست پدې دومره موده کې ډېرو کسانو زه پوړته او کښته وکتلم دوی زیاتره د حکومت جاسوسان و. او یا هغه کسان وو چې زه د یو خطرناک جاسوس په بڼه ورته ښکارېدم د انتظار شېبې یوه په بله پسې سختېدلې او خطرناکې کېدلې، د مستوفي سلطان محمد پته و نه لګېده زه ته مې ورسېده چې دغه سړی یې نیولی دی خو وروسته معلومه شوه چې هغه یې نه و نیولی او بالاخره دغه معما باندې څوک پوه نشول.»

د جرګې د غړو له خوا د یولړ مباحثو وروسته داسې فیصله وشوه چې جرګه دې بېلو بېلو سیمو ته په بېلو بېلو ګروپونو کې لاړه شي چې ته هېڅا هم زړه نه شو ښه نکولی ځکه د احل چک ته تلل د جرګې د غړو په نزد له سره د تېرېدلو معنی ورکوله ځکه دوی له ځان سره بېله خپلې ناکامۍ څخه د ورلو هېڅ نه لرل حکومت لکه چې پخپله طرحه او پلان کې خپله ناکامي

لیدلي وي نو ځکه یې د جرګې له غړو سره وضعه سمه شوه.

چګ ته د جرګې په رسېدو او له مجاهدینو سره د لومړني وړځې د - ملاقات په ورځ له یو لړ خبرو او بحثونو وروسته مجاهدینو خپله فیصله سبا ته پرېښوده خو سبا خبر راغی چې سیمې ته یوه لویه قوا راتلونکې ده.

د شورا رئیس د جرګې غړو ته خبر ورکړ چې حکومت د الاسنک نه چې د چګ ولسوالۍ په ختیځ کې پروت دی حمله شروع کړېده - موږ د زما نخبلو کلي ستاسې له پاره انتخاب کړېدی موږ پخپله یوه نامعلوم ځای ته روانېږو نور نو ستاسې خوښه چې اله موږ سره په قوم کې پاتې کېږئ او که نه.

د جرګې په غړو د مرګ ویره پرده غوړولې وه د ډېر وارخطا وو. له دوی سره داویره وه چې مجاهدین به دا فکر وکړي چې جرګه یواځې د دوی د اغفال له پاره په کار اچول شوې وه او مجاهدین به حتماً له دوی څخه غچ اخلي. او دوی به په دغه جرم محاکمه کوي چې دوی مجاهدین د جرګې په نامه په اغفال کې ساتلي وو خو داسې و نه شوه د دوی د ویرې او توقع خلاف د اسلامي انقلابي شورا رئیس عبدالکبیر په بشاشه څېره لکه چې د دوی دغه ویره یې درک کړې وي د لطف او متانت نه په ډک آواز له دوی نه پوښتنه وکړه ویې ویل: زموږ خو همدا حال دی چې تاسې خپه شوی نه واست نو رو مشرانو هم دا د ولس د مهربانۍ او داډ خبرې ورته وکړې.

مجاهدینو دغه شپه د جرګې له غړو سره تېره کړه او دوی یې په شو نبو خبرو چې د مذهبي احساساتو ملي دردونو او نورو په نړه پورې مفاهیمو څخه ډکې وې خوشاله ساتل او د هغوی د ویرې او اندېښنې د له منځه وړلو له پاره یې له هغوی سره له مطایبو ډکې خبرې وکړې او په سبا یې هغوی ته وویل: موږ ته ثابته شوه چې تاسې هیڅکله هم د - حکومت نشئ کېدی (په رښتیا هم چې جرګه د حکومت نه شوه د جرګې



غړي وار په وار له مجاهدینو سره یو ځای شول ښاغلی عبدالجلیل وجدي همغلته له مجاهدینو سره پاتې شو، اسمعیل خان مایار هم وروسته د - هجرت لاره ونیوله. خدایداد خان او د ډېرو نورو هم هجرت وکړ او یا له مجاهدینو سره یو ځای شول. او اوس یې کړنې شمېر د مجاهدینو په لیکو کې ځای لري،)

ستاسې او ستاسې د جرګې قدر یواځې موږ ته معلوم دی موږ جهاد هم کوو او سیاست هم - تاسې حکومت موږ ته تش لاس راولېږلی که څه هم موږ ترې د خیر توقع نلرو خو تاسې چې زموږ مشران یاست خالي لاس مو نه لېږو موږ د پولیسو د قوماندان علي شاه پیمان په نوم یو لیک لیکلی چې تاسې ته یې د رکوو ښایي دوموږ مهم څه یکې نه وي خو موږ ته هغوی یواځې دومره اهمیت لري چې د هغه په ورلو تاسې تش لاس لاړ نشئ.

د جرګې د تګ پر وخت ځینو مجاهدینو غوښتل چې له جرګې خپل غچ واخلي ځکه د حکومت حملي دوی ډېر پارولي ؤ خو مشرانو یې پرېښنو د ل هغوی دا جرګه د حکومت یو خطرناک کوابی او توطیه ګڼله او دلایل یې هم وړاندې کول چې دغه جریان د جرګې په پیل او پای کې ډېر جدي بنه درلوده.

د جرګې له خوا پیمان ته د ولس سرپېتی لیک وړاندې کړی شو دلیک له لوستلو سره د پولیسو عمومي قوماندان داسې تاوړتاو شو چې تا به ویل غومبسو وچیچه او په عصباني حالت کې یې د کاغذ په لیکونکی لفظي حملې وکړې او د دې له پاره چې د جرګې غړي د کاغذ لیکونکي په سار سلوک قضاوت کولو ته راوبولي هغه یې جرګې ته ولوست.

لیک داسې و:

د ستړګو تورو علي شاه جان پیمان!

موږ قصداً ستاسې له پاره ستاسو رسمي القاب په کار وانه چول او د پښتني میني لقب مو درته غوره کړ - دا ځکه چې تاسې موږ ته د قومي جرګې

لیدلي وي نوځکه یې د جرګې له غړو سره وضعه سره شوه.

چک ته د جرګې په رسېدو او له مجاهدینو سره د لومړنۍ ورځې د ملاقات په ورځ له یولړ خبرو او بحثونو وروسته مجاهدینو خپله فیصله سبا ته پرېښوده خو سبا خبر راغی چې سیمې ته یوه لویه قوا راتلونکې ده.

د شورا رئیس د جرګې غړو ته خبر ورکړ چې حکومت د الاسنک نه چې د چک ولسوالۍ په ختیځ کې پروت دی حمله شروع کړېده - موږ د زما نخېلو کلي ستاسې له پاره انتخاب کړېدی موږ څپله یوه نامعلوم ځای ته روانېږو نور نو ستاسې خوښه ده چې ګله موږ سره په قوم کې پاتې کېږئ او که نه.

د جرګې په غړو د مرګ وېرې پرده غوړولې وه دېر وارخطا وو. له دوی سره داوېره وه چې مجاهدین به دا فکر وکړي چې جرګه یوازې د دوی د اغفال له پاره په کار اچول شوې وه او مجاهدین به حتماً له دوی ځخه غچ اخلي.

او دوی به په دغه جرم محاکمه کوي چې دوی مجاهدین د جرګې په نامه په اغفال کې ساتلي وو خو داسې و نه شوه د دوی دوېرې او توقع خلاف د اسلامي انقلابي شورا رئیس عبدالکبیر په بشاشه څېره لکه چې د دوی دغه وېره یې درک کړې وي د لطف او متانت نه په ډک آواز له دوی نه پوښتنه وکړه وې ویل: زموږ خو همدا حال دی چې تاسې خپه شوی نه واست نورو مشرانو هم دا دولت د مهربانۍ او داړ خبرې ورته وکړې.

مجاهدینو دغه شپه د جرګې له غړو سره تېره کړه او دوی یې په ښو ښو خبرو چې د مذهبي احساساتو، ملي دردونو او نورو په نړه پورې مفاهیمو ځخه ډکې وې خوشاله ساتل او د هغوی دوېرې او اندېښنې د له منځه وړلو له پاره یې له هغوی سره له مطایبو ډکې خبرې وکړې او په سبا یې هغوی ته وویل: موږ ته ثابته شوه چې تاسې هېڅکله هم د حکومت نشئ کېدی او په رښتیا هم چې جرګه د حکومت نه شوه د جرګې



غړي وار په وار له مجاهدینو سره یوځای شول. ښاغلی عبدالجلیل وجدي همغلته له مجاهدینو سره پاته شو، اسمعیل خان ما یار هم وروسته د هجرت لاره ونیوله. خدایداد خان او د پرو نورو هم هجرت وکړ او یا له مجاهدینو سره یوځای شول. او اوس یې کښ شمېر د مجاهدینو په لیکو کې ځای لري،

ستاسې او ستاسې د جرګې قدر یوازې موږ ته معلوم دی موږ جهاد هم کوو او سیاست هم. تاسې حکومت موږ ته تش لاس راولېږلی که څه هم موږ ترې د خیر توقع نلرو خو تاسې چې زموږ مشران یا ست خالي لاس مو نه لېږو موږ د پولیسو د قوماندان علي شاه پیمان په بنوم یو لیک لیکلی چې تاسې ته یې درکوو ښایي دومره مهم څه یکې نه وي خو موږ ته هغوی یوازې دومره اهمیت لري چې د هغه په ورلو تاسې تش لاس لاړ نشئ.

د جرګې د تګ پر وخت ځینو مجاهدینو غوښتل چې له جرګې خپل غچ واخلي ځکه د حکومت حملې دوی ډېر پاروللي ځو مشرانو یې پرېښنو دل هغوی دا جرګه د حکومت یو خطرناک کوابس او توطیه ګڼله او دلایل یې هم وړاندې کول چې دغه جریان د جرګې په پیل او پای کې ډېر جدي بنه درلوده.

د جرګې لاخول پیمان ته د ولس سرپټي لیک وړاندې کړی شو د لیک له لوستلو سره د پولیسو عمومي قوماندان داسې تاو راتاو شو چې تا به ویل غوېښسو وچیچه او په عصباني حالت کې یې د کاغذ په لیکونکې لفظي حملې وکړې او ددې له پاره چې د جرګې غړې د کاغذ لیکونکي په سار سلوک قضاوت کولو ته راوبولي هغه یې جرګې ته ولوست.

لیک داسې و:

دستګو نوره علي شاه جان پیمان!

موږ قصداً ستاسې له پاره ستاسو رسمي القاب په کار وانه چول او د پښتني میني لقب مو درته غوره کړ. دا ځکه چې تاسې موږ ته د قومي جرګې

په وسیله د یوه ځوان په توګه پیغام رالیږلی ؤ اوکه چې د جرګې غړو مونږ ته ـ وویل تاسې د وردکو په حال چې بې کلتور او بې شعوره جټ الوتکو کوماندوی هلیکوپترونو داوبوس توپونو، غرنیو هاوانونو، زره دارو ـ زره پوښو ـ درنو او سپکو ماشینګنو او درنو بمونو یې کورونه وران کړي نړونه یې سوری کړی اوجوماتونه اوقرآنونه یې سوځولي ـ ښځې اوماشومان یې په غرونوکې د روزګار سرو اوتودو ته سپارلي دي او په ځای د دې چې دوی ته کور، کالي او ډوډۍ ورکړي شي کالي یې حکومت په غلا وړي، کورونه یې سوځول شوي او ډوډۍ یې له خولې نه اخیستل شوی ده یوځه ژړلي وو اومونږ په غم کې موځان راسره شریک نبودلی ؤ ـ دادیوه ریښتیانی افغان وظیفه ده چې د نورو په غم کې ځان شریک کړي.

خوګوره په پښتو او پښتونولي کې سیاسي چل اودوکه نه بخښونکی ګناه ده، پښتانه د توږ او پېغور پوره چانه نه پرېږدي که هغه دوردکو غوندي بې دفاع قوم هم وي ، دوی کولی شي چې تر وروستی کس پورې ځانونه دخپل ایمان اوافغانیت په ځای کولوډپاره قرباني کړي.

البته تاسو ته دا هم معلومه ده چې پښتانه ملامتي په ځان نه شي زغملای خوبنه کاروشو چې تاسې ته معلومه شوه چې په وروستیو پېښوکې وردکو کوم مسئوولیت نه درلود.

مونږ خپله قامولی له پلیتوعناصرو څخه پاکه کړه ـ نو ولې په تاسې اړ لري چې پخپل دولت او حزب کې هغوی ته ځای ورکوی اوکه نه ؟

باقي شوه دروغجي جوړې خبرې که چېرې تاسې اسلامي شریعت حقوقي پرنسیپونه اویاد پښتولارې نرخونه اوکاڼې په نظرکې ونیسئ او د بندیانو اونورو موضوعاتو په باره کې خپلې وعدې ترسره کړئ نو زمونږ نورې غوښتنې او شرایط به هم ولاړ وي کړي شي او خبرې به دوام پیدا کړي دقوم له خوا تاسې ته داڅو درکول



کېږي مونږ هیڅکله د ملامتی تورلو پېغور په ځان نه منو.

کرانه ! که تاسو واقعاً د وردکو دحق په جانب او خپل شوي قوم سره مینه لرئ نو بیا هم دیوه پښتون په توګه د دوی د مظلومیت او نه ملامتی حالات لکه څنګه چې ستاسې وجدان حکم کوي او د جرګې غړیو ته موشرح کړی دی ـ هماغسې خپلو ستړو مقاموته وړاندې کړئ.

په پای کې بنا یې ووایو چې دوردکو مظلوم اوځپل شوی قوم به هیڅکله هم د زور او ظلم په مقابل کې تسلیم نه شي.

په ځوانۍ دې برکت شه
د چک د سپین بږیو له خوا

وکورئ د لیک په سرخط کې د ښارندوی لوی قوماندان دیپلوم انجنیر علي شاه پیمان د ماشوم غوندي د سترګو تورعلي شاه جانه په القاب مخاطب شوی پدې دول دغا طبیعي معنا داوه چې قومي مشران له هغه سره د یوه داسې چا په حیث مکاتبه لري چې د قوم دمشرانو په مقابل کې د ټرکوچنی دی.

په عین حال کې دوی حکومت په رسمیت نه پېژني یواځې دعلي شاه جان پیمان د شخصي احساس له مخې هغه ته لیک استول شوی.

دلیک دمتن په اوږده وجرګې پیمان ته وویل چې داسې نده دوردکو سپین ږیرو تاسې ته په درلښت کتلی اوتاته یې د دې ویاړ بخښلی چې د یوه پښتون ځوان په توګه ستاسو دهیلو اوآرزوسره سم درته وظیفه وسپاری ترڅو تاسو خپلو مربوطه مقاماتو ته د قوم مشکلات او پدوی باندې د وروستل شویو بدو حالاتو په اړه معلومات ورکړئ !

علي شاه پیمان په احساساتو راغئ له چوکۍ ولاړ شو خو قدمه یې وړاندې وروسته واخیستل بېرته میز ته راوګرځېد سترګې یې را وایستلې او پرمینږ یې د سوک له یوه سخت ګوزار سره وویل ، زه خپلې پښتو او پښتونولی نه تېر

په وسیله د یوه ځوان په توګه پیغام رالیږلی و اوکه چې د جرګې غړومونږ ته –
وویل تاسې د وردګو په حال چې بې کلتور او بې شعوره جټ الوتکو
کوماندوی هلیکوپترونو داوبوس توپونو، غرنیو هاوانونو، زره دارو –
زرهپوشو- درنو او سپکو ماشینګنو او درنو بمونو یې کورونه وران کړي
ندرونه یې سوري کړي اوجوماتونه او قرآنونه یې سوځولي. ښځې او ماشومان
یې په غرونو کې د روزګار سرو او تودو ته سپارلي دي او په ځای د دې
چې دوی ته کور، کالي او ډوډۍ ورکړشي کالي یې حکومت په غلا وړي، کورونه
یې سوځول شوي او ډوډۍ یې له خولې نه اخیستل شوې ده یو څه ژړلي
وو او زمونږ په غم کې موځان راسره شریک نښودلی ؤ. دادیوه ریښتیاني افغان
وظیفه ده چې د نورو په غم کې ځان شریک کړي.

خوګوره په پښتو او پښتونولۍ کې سیاسي چل اودوکه نه بخښونکی ګناه
ده، پښتانه د توره او پیغور پوره چاته نه پرېږدي که هغه دوردکو غوندي بې دفاع
قوم هم وي، دومره کولی شي چې تر وروستي کس پورې ځانونه د خپل ایمان
او افغانیت په ځای کولو د پاره قرباني کړي.

البته تاسو ته دا هم معلومه ده چې پښتانه ملامتي په ځان نشي
زغملای خوبنه کاروشو چې تاسې ته معلومه شوه چې په وروستیو
پېښو کې وردګو کوم مسئولیت نه درلود.

مونږ خپله قامولي له پلیتو عناصرو څخه پاکه کړه- نو ښو په تاسې اړه لري
چې پخپل دولت او حزب کې هغوی ته ځای ورکوئ اوکه نه ؟

پاتې شوه دروغجې جوړې خبره که چېرې تاسې اسلامي شریعت حقوقي
پرنسیپونه او یاد پښتو لارې نرخونه اوکانې په نظر کې ونیسئ او د بندیانو
او نورو موضوعاتو په باره کې خپلې وعدې ترسره کړئ نو زمونږ نورې غوښتنې او شرایط
به هم ونه لندې کړی شي او خبرې به دوام پیدا کړي دقوم له خوا تاسې ته د انو درکول



کېږي مونږ هېڅکله د ملامتۍ تورلو پېغور په ځان نه منو.

کرانه ! که تاسو واقعاً د وردګو د حق په جانب او خپل شوي قوم سره مینه
لرئ نو بیا هم دیوه پښتون په توګه د دوی د مظلومیت او نه ملامتۍ حالات لکه
څنګه چې ستاسې وجدان حکم کوي او د جرګې غړیو ته موشرح کړي دي -
هماغسې خپلو ستر و مقاماتو ته وړاندې کړئ.

په پای کې بناپي و وایو چې دوردګو مظلوم او خپل شوی قوم به هېڅکله
هم د زور او ظلم په مقابل کې تسلیم نه شي.

په ځوانۍ دې برکت شه
د چګ دسپین ږیرو له خوا

وګورئ د لیک په سرخط کې د ښارندوی لوی قوماندان د ډیپلوم انجنیر
علي شاه پیمان د ماشوم غوندې دستر ګو تور علي شاه جانه په القاب مخاطب
شوی پدې پوول د مخا طبو معنا داوه چې قومي مشران له هغه سره د یوه
داسې چا په حیث مکاتبه لري چې د قوم د مشرانو په مقابل کې د ټرکوچنی دی.

په عین حال کې د دوی حکومت په رسمیت نه پېژني یوا ځې د علي شاه جان
پیمان د شخصي احساس له مخې هغه ته لیک استول شوی.

دلیک د متن په اوږه وجرګې پیمان ته وویل چې داسې نده دوردګو
سپین ږیرو تاسې ته په درنښت کتلي او تا ته یې د دې ویاړ بخښلی چې د یوه
پښتون ځوان په توګه ستاسو د هیلو او آرزو سره سم درته وظیفه وسپاري ترڅو
تاسو خپلو مربوطه مقاماتو ته د قوم مشکلات او پدوی باندې د وروستي شویو
بدو حالاتو په اړه معلومات ورکړئ !

علي شاه پیمان په احساساتو راغئ له چوکۍ ولاړ شو خو قدم یې وړاندې
وروسته واخیستل بېرته میز ته راوګرځید سترګې یې را وایستلې او پرمېز
یې د سوک له یوه سخت ګوزار سره وویل، زه خپلې پښتو او پښتونولۍ نه تېر

ثابته شوه خلقیان څه چې وایي هغسې نشي کولی.

قوم له لومړي سره پوهېده چې خلقیان پرجرګو او د پښتنو پر عنعناتو هېڅ عقیده نلري منتهي غواړي چې پدې حساسه مرحله کې ورڅخه بڅېله ګټه استفاده وکړي پدې دول د ولسونو دا ایللو په اړه درثیم دا حربه هم د ورډکو د مجاهدو مشرانو د تدبیر، کارپوهنې او درایت له مخې له کاره ولوېده او خپله د دوی د غاړې نړېندی شوه.

او هغه د خوشال بابا خبره :

یا تکیه دیوه خدای ده یاد توري
په جرګو مرکو نشي کار تمام

## یادونه :

پدغه لیکنه کې د محترم عبدالجلیل وجدي د کتاب ( په افغانستان کې دعنعنوي جرګو نن او پرون ) څخه زیاته استفاده شوې او په ځینو ځایونو کې دهغه نه په مستقیمه توګه عبارات هم را اخیستل شوي دي.

د نوموړي کتاب یو فصل د ورډکو د همدغو جرګو په اړه چې لیکوال خپله د هغې برخوال وُ کښل شوي دي لوستونکي کولی شي چې د زیات تفصیل له پاره هغه کتاب ته مراجعه وکړي.



نیم، څه چې مې ویلی هغه سرته رسوم. زه د ورډکو مشران خپل مشران بولم او زیاته تلوسه لرم چې له هغوی سره خپله مخامخ وکورم، که د دوی دلته راتګ موږ ته یې په درنښت هرکلی وکړو. تاسي د جرګې غړي به د دوی د ژوند تضمین وکړئ او که چېرې ما وربولی زه هم چمتو یم چې ورشم خو زما د ژوند انه تضمین هم ضروري ده چې داخبره کوم له مرګه نه وېرېږم - یواځې د وهم اندېښنه لرم چې که چېرې ورډګ ما مړ کړي زموږ د بین المللي دښمنانو نیوونه به بخ شي او په خپلو لاسو کانو کې به وواېي چې ورډکو د داخله وزارت دا منیې یوستر قوماندان ووژه - بیا یې قلم را واخیست او د قوم په نوم لیک چې د ننواتي بڼه یې درلوده ولیکه :

د پر وقدرمنو پښتنو زړورو سپین ږیرو او نازولو د ورډکو د چک سپین ږیرو !

له ټولو نه اول السلام علیکم !

ستاسو خط ماته راورسېد د ستاسو د خط د ویلو نه ډېر خوشحاله شوم زه د پرېشیان نه لیکم - خو د پښتانه یوه خبره وي زه هم یو پښتون یم په پښتو کې یو پښتون بل پښتانه ته تن نه ورکوي - نو زه هم تاسو ته تن نه ورکوم - خو زه وایم چې تاسي ټول زما پښتانه مسلمان ورونه یاست زما ستاسي په ماشومانو، ښځو، غویانو، چرګو او سپو زړه سوځي - پښتون خپل مړی په ننواتي بخښي - زه وایم چې خپله خاوره موده، خپله څمکه موده خپله آرامه زندګی وکړئ - د خلکو کوندنا سي سره کوم مخالفت تر بو رکلوي او دښمني نلري - د دغې ضامن زه یم نور مو په خدای سپارم - خوشحاله - کامیا به اوسئ، زه ستاسو سپین ږیرو د لید و انتظار لرم.

د خدای پامان

قوم د جرګې یو غړي ته چې د علي شاه لیک یې ورته وویل :

موږ له لومړي سره پدې پوهېدو چې خلقیان قومي او اخلاقي ارځښتونو ته اهمیت نه ورکوي خو موږ چې غوره اسلامي اخلاق او معیارونه لرو هېڅ دول ملامتي مو په ځان ونه منله نو جرګې ته حاضر شو خو بنه شوه چې تاسو او نورو مشرانو ته

ثابته شوه خلقیان څه چې وایي هغسې نشي کولی.

قوم له لومړي سره پوهېده چې خلقیان پر جرګو او د پښتنو پر عنعناتو هېڅ عقیده نلري منتهی غواړي چې پدې حساسه مرحله کې ورڅخه بخپله ګټه استفاده وکړي پدې دول د ولسونو دا ډیللو په اړه درڅم دا حربه هم د وردګو د مجاهدو مشرانو د تدبیر، کارپوهنې او درایت له مخې له کاره ولوېده او خپله د دوی د غاړې نړیندی شوه.

او هغه د خوشال بابا خبره:

یا تکیه دیوه خدای ده یاد توري
په جرګو مرکو نشي کار تمام

## یادونه:

پدغه لیکنه کې د محترم عبدالجلیل وجدي د کتاب ر په افغانستان کې د عنعنوي جرګو نن او پرون) څخه زیاته استفاده شوې او په ځینو ځایونو کې د هغه نه په مستقیمه توګه عبارات هم را اخیستل شوي دي.

د نوموړي کتاب یو فصل د وردګو د هدغو جرګو په اړه چې لیکوال خپله د هغې برخوال وُکنبل شوېدی لوستونکی کولی شي چې د زیات تفصیل له پاره هغه کتاب ته مراجعه وکړي.



نیم، څه چې مې ویلی هغه سره رسوم. زه د وردګو مشران خپل مشران بولم او زیاته تلوسه لرم چې له هغوی سره خپله مخامخ وګورم، که د دوی دلته راځي مونږ به یې په درنښت هرکلی وکړو تاسې د جرګې غړي به د دوی د ژوند تضمین وکړئ او که چېرې ما ور بولی زه هم چمتو یم چې ورشم خو زما د ژوند د انه تضمین هم ضرور دي نه چې دا خبره کوم له مرګه نه ویرېږم - یوازې دومره اندېښنه لرم چې که چېرې وردګ ما مرکړي زمونږ د بین المللي دښمنانو نه نه به بخ شي او په خپلو ادېرګانو کې به وواېي چې وردګو د داخله وزارت دا منېږ یوستر قوماندان وواژه - بیا یې قلم راواخیست او د قوم په نوم لیک چې دننواتي بڼه یې درلوده ولیکه،

د ډېر وقدرمنو پښتنو زړورو سپېڅلو او نازولو د وردګو د جګ سپین ږیرو!

له ټولو نه اول السلام علیکم!

ستاسو خط ما ته راورسېد د ستاسو د خط د ویلو نه ډېر خوشحاله شوم زه ډېر شیان نه لیکم - خو د پښتانه یوه خبره وي زه هم یو پښتون یم په پښتو کې یو پښتون بل پښتانه ته تن نه ورکوي - نو زه هم تاسو ته تن نه ورکوم - خو زه وایم چې تاسې ټول زما پښتانه مسلمان ورونه یاست زما ستاسې په ماشومانو، ښځو، غویانو، چرګو او سپو زړه سوځي - پښتون خپل مړي په ننواتي بخښي - زه وایم چې خپله خاوره موده، خپله څمکه موده خپله آرامه زندګي وکړئ - د خلکو کوندتا سې سره کوم مخالفت نه بورکلوي او دښمني نلري - د دغې ضامن زه یم نورمو په خدای سپارم - خوشحاله - کامیا به اوسئ، زه ستاسو سپین ږیرو دلید و انتظار لرم.

د خدای پامان

قوم د جرګې یو غړي ته چې د علي شاه لیک یې ورته ووېیل:

مونږ له لومړي سره پدې پوهېدو چې خلقیان قومي او اخلاقي ارځښتونو ته اهمیت نه ورکوي خو مونږ چې غوره اسلامي اخلاق او معیارونه لرو هېڅ ډول ملامتي مو په ځان ونه منله نو جرګې ته حاضر شو خو بنه شوه چې تاسو او نورو مشرانو ته

بشپړې جبهه يې جګړې او عمومي پاڅون بنه لرله ، تردې چې دمجاهدينو ترتسلط لاندې سيمو حدودهم معلوم وو- بله داچې په دغه قيام کې دهيڅ يوه سياسي جريان دخالت نه ليدل کيده بلکې ديوه خود-جوشه حرکت په توګه دسيمې دقومي مشرانو ترقيادت لاندې هغه ته زمينه برابره شوه په لارواچول شو ، اوج ته ورسيد او دوام يې وموند-له همدې ځايه وه چې دقيام اداره دولسي قيادت په واک کې وه او يوه داسې متحده اداره يې رامنځ ته کړې وه چې په باورسره ويلې شو چې دحکومتونو په نسبت په حالاتو ډيره حاکمه او يوه مثالي امنيت يې ټينګ کړې وو .

خو کله هم چې دپېښور دګوندو نو سيورې په سيمه وغوړځېده او دسياسي اقتدار لوبې پيل شوې نو ددغه پاڅون اصيل اهداف ، لاسته-راوړني ، پروګرامونه او اميدونه هم ورسره تاله ترغه شول او يو پاڅيدلي مقاوم ، متحد او يوه موټي قوم په ګوندونواو ګونديو وويشل شو.

ښکاره خبره ده چې دغه ليکنه دارقامو او موادو له مخې ددغه قيام بشپړتاريخ او پيښليک نشي ګڼل کيدې او نه هم دولس دجهادې قهرمانيو، حماسو او قربانيو انځورګرې کولې شي بلکې يواځې ددغه قيام په رابطه پرحقايقو او واقعيتونو ولاړديوه شاعرانه او پرهر ژلې احساس يوتت تصوير او نيمګړې محصول دې-دومره چې ليکوال خپل تأثرات په ادبي رنګ کې غوټه کړيدي . داهم بايد ووايو چې دغه ليکنه دقلم مجلې په بيلابيلو ګڼو کې تر ځانګړو عنوانو لاندې خپره شويده او اوس همغه په «قلم» کې خپورشوې متن بيله دې چې دوخت دبدلون او نور و تغيراتو له مخې څه لاسوهنه پکې وشي کټ-مټ خپربږي- ځکه زه غواړم داليکنه په يوه .معينه زماني مقطع کې زما دجذباتواو انګيرنود محصول په توګه لاس نه خوړلي پاتي شي .

مينه او درنښت
ننګيال



# ... اوګولې وچليدې !!!

د افغانستان دجهاد تاريخ که له يوې خوا غمرلړلی تاريخ دی او وير لړلی خو له بلې خوا وياړلی تاريخ دی او سرلوړی . د روسي وحشي ښکيلاک او د دوی د بريځوپه وړاندې د افغانستان د مسلمان او اتل اولس پاڅون يو حيرانوونکی پاڅون دی او هيبن کوونکی . د باطل د يوه وسله وال ځواکمن او په ځان مغرور وحشي ښکيلاک په مخ کې د تش لاسو خود حق په مينه مستو مؤمنانو راولاړيدنه او دريدنه او بيا په دې وحشي ځواک د هغه برياليتوب کيدنه د ټولې دنيا د تعجب او حيرانتيا ورړده .

رښتيا هم دهيواد په هره برخه کې ددې پاڅيدنو پيل او ابتدا حالبه ده ، د ايمان او ارادې په پخه بنا ولاړه ده او د حق د نه فنا کيدونکي نور په رڼا کې پرمختللي او په دې وسيله زموږ محلي پاڅونونه ملي او هيواد وال شوي او د باطل په مقابل کې يې يو ټينګ صف او " بنيان مرصوص " جوړ کړی دی .

# ... او حق د سرښندونکو خپل او د ټوپکونو ږغونو دکې پاتې شول

وفادار شاګرد د خپل نابغه استاد خوله له خاورو ډکه کړې وه - اوس نو هغه ځان
د میدان یکه تاز ګڼلو - په رژیم کې یې هم مخالفین پخپل کومان تس نس کړي وو - د قانونیت
عدالت او مصؤنیت بګتې یې یکنواخته غبرولې - پخوانۍ جنایات، نیونې، وژنې، وحشت
او دهشت یې پرتره کې ورتېلي و - او په همدې توسه یې د څرخي پله په خونړي
زندان کې د دوولس زره بندیانو د وژنې تورلست د خپل ناروا حاکمیت د قانوني ښودنې په
تمه د داخله وزارت تر مخې ځړولی و.

هر ماښکر به د کابل له محکومې راډیو ځنه له آمونه ترا باسینده د عزیز ولي سندره
د هغه په سټغ آواز سره غبرګېده خو لدې ناخبره چې د آمو او ابا سیند همدغه اسره به
د ده سر خوري.

دغوي د بدمرغي کودتا د خونړي سپاوون قوماندان ځان له نور هر ډول خطر
ځنه بې غمه ګڼلو کانه د پرچمیانو کار یې کړی وو - د تره کي ډلګۍ یې د روسي
پر سفارت ورننیستلې وه او پوزانوف یې له سفارت ځنه شړلی و خو د روسانو غلچکي
برید او کمین نیونه یې په فکر کې هم نه تېرېده چې د ده غاړې ته یې ورو ورو د رښمنو



نږیندی وراچوله.

د ده پر وړاندې یواځې د مجاهدینو مقاومت پاتې و له نورو ګردو د ننیزو مخالفتونو
او ګواښونو ئې هغه زړه تول ځکه خو هغه په پوره وحشت سره د هېواد په کوټ کوټ
کې د مقاومت ټکولو ته ځځه وکړځوله.

وردګو ته یې له پخوا زړه ډک و ځکه له ده سره یې دوکه کړې وه او د لږ
په خپلو کې د جنګوني تمه یې ورته طاعون او په شرمونو شرمولې وه له همدې امله یې
د خپل بې جلبه اقتدار له پیله په وردګو تانکونه او الوتکې وربارش کړې. هغه وخت له
مجاهدینو سره نه راکټ و، نه د هشکه او نه هاوان. ماشینګڼې هلته داسې ښکارېده لکه نن
چې په کومه جبهه کې ستنګر ښکاري.

خو د جهاد د جذبې ټرښغرانده لمبې پر آسمان لګېدې او د طاغوتیانو او ستمګرو د
استبداد پر ماڼۍ یې اور بل کړی و د احساساتو غرغړېزه څپو یې په بله پسې د خوځښت
سیلابي موجونه توپاني کول. ځکه هغه وخت په زړونو کې یواځې او یواځې د جهاد
تلوسه او مینه وه او د خدای (ج) رضا او خوښې هدف - نه د دنیاوي لاس ته راوړنو لېوېدلي
غوښتنې. وسله او وسیله کمه څه چې په نشت شمار وه مجاهدینو په ټوله سیمه کې اعلان
وکړ چې که هرڅوک په کورکې هر رنګه ټوپک او وسله لري جبهې ته یې دې وسپاري
د خوات اوسېدونکي چې د سیمې په لومړي برخه کې اوسېږي له یوې مخې بې وسلې
وو او د دې له پاره چې له خپلې سیمې پخپله دفاع وکړي بناپي یوه جبهه ولري که څه هم په
چړیې او موشکش ټوپکونو هیڅ نه شوي کېدای خو د جهاد جذبې څه نه کېدل نېپژندل
او د دغې متل پر بنا چې وسله هغه ده چې په لاس درغله هغوی هم پر همدغه وړ ټوپکونو
جبهه جوړه کړه او هغه هم د سیمې په لومړۍ دفاعي کرښه کې.

د سیمې پر لومړۍ دفاعي کرښه د همدغې جبهې د مجاهدینو او ټانکونو، توپونو او
الوتکو مقابله پیل شوه - ګردونه آسمان ته وختل د توپونو له غورهېږ سره ځمکه لکه زلزلې
رپېدله - جانونه داو ږیاران او راوه - دغازیانو پر سینو د دښمن د وحشت ګولیو څولې

# ... او دحق د سربښندونکو خپل اودتوپکونو نهو دک پاتې شول

وفادار شاګرد د خپل نابغه استاد خوله له خاورو ډکه کړې وه - اوس نو هغه ځان د میدان یکه تاز ګڼلو - په رژیم کې یې هم مخالفین په خپل ګومان تس نس کړي وو - د قانونیت عدالت او مصؤنیت بګتې یې یکنواخته غږوله - پخوانی جنایات، نیونې، وژنې، وحشت او دهشت یې پرتره کې ورتپلې ؤ - او په همدې توسه یې د څرخي پله په خونړي زندان کې د دوولس زره بندیانو د وژنې تورلست د خپل ناروا حاکمیت د قانوني ښودنې په تمه د داخله وزارت ترمخې ځړولې ؤ.

هرمازیګر به د کابل له محکومې راډیو څخه له آمونه تر اباسینده د عزیز ولي سندره د هغه په ستغ آواز سره غبرګېده خولدې ناخبره چې د آمو او اباسیند همدغه اسره به د ده سر خوري.

دغوبې د بدمرغي کودتا د خونړي سباوون قوماندان ځان له نور هر ډول خطر څخه بې غمه ګڼانه د پرچمیانو کار یې کړی وو - د تره کي ډلګی یې د روسي پرسفارت ورننیستلی وه او پوزانوف یې له سفارت څخه شړلی ؤ خود روسانو غلچکی برید او کمین نیونه یې په فکر کې هم نه تېرېده چې د ده غاړې ته یې ورو ورو دورښمنو



زبندی وراچوله.

د ده پر وړاندې یوازې د مجاهدینو مقاومت پاتې ؤ له نورو ګردو د ننیزو مخالفتونو او ګواښونو نه د هغه زړه تړول ؤ ځکه خو هغه په پوره وحشت سره د هیواد په ګوټ ګوټ کې د مقاومت ټکولو ته مخه وکړ ځوله.

وردګو ته یې له پخوا زړه ډک ؤ ځکه له ده سره یې دو که کړې وه او د ولس په خپلو کې د جنګونې تمه یې ورته طاعون او په شرمونو شرمولې وه له همدې امله یې د خپل بې جلبه اقتدار له پیله په وردګو تا نکونه او الوتکې ورمارش کړې. هغه وخت له مجاهدینو سره نه راکټ ؤ، نه د هشکه او نه هاوان. ماشینګڼې هلته داسې ښکارېده لکه نن چې په کومه جبهه کې ستنګر ښکاري.

خو د جهاد د جذبې ښه غړانده لمبې پر آسمان لګېدې او د طاغوتیانو او ستمګرو د استبداد پرمانې یې اوربل کړې ؤ د احساساتو غرغړیزه څپو یو په بله پسې د خوځښت سېلابي موجونه تو پاني کول - ځکه هغه وخت په زړونو کې یوازې او یوازې د جهاد تلوسه او مینه وه او د خدای (ج)، رضا او خوښې هدف - نه د دنیاوي لاس ته راوړنو لوېدلې غوښتنې. وسله او وسیله کمه څه چې په نشت شمار وه مجاهدینو په ټوله سیمه کې اعلان وکړ چې که هر څوک په کور کې هر رنګه ټوپک او وسله لري جبهې ته یې دې وسپاري د خوات او سېدونکي چې د سیمې په لومړي برخه کې اوسېږي له یوې مخې یې وسلې وړ او ددې له پاره چې له خپلې سیمې څخه دفاع وکړي بنا یې یوه جبهه ولري که څه هم په چړي او موشکش ټوپکو هیڅ نه شوې کېدای خو د جهاد جذبې څه نه کېدل نېژندل او دغې متل پربنا چې وسله هغه ده چې په لاس درغله هغوی هم پر همدغه وړ ټوپکونو جبهه جوړه کړه او هغه هم د سیمې په لومړنې دفاعي کرښه کې.

د سیمې پر لومړنۍ دفاعي کرښه د همدغې جبهې د مجاهدینو او ټانکونو، توپونو او الوتکو مقابله پیل شوه - ګردونه آسمان ته وختل د توپونو له غورېږې سره ځمکه لکه د زلزلې رپېدې ده - جاروبنو داو ړباران اوراوه - دغازیانو پرسینو د دښمن د وحشت ګولیو خولې

ښخولې او په وينو کې لمبېدل د شهيدانو د سرلوړي کاروان بهير غازيان نور هم د انتقام اوکسات د جذبو توپاني څپو ته سپارل.

د جنګ په سرولمبو او د ګوليو په ږلۍ کې تور سرو زخميان پخپلو کورونو کې ځای په ځای کول او د شهيدو دکې خمرې به يې ترنيمايي لارې د ماشومانو په لاس مجاهدينو ته وررسولې.

د جګړې پر دوهمه ورځ د مجاهدينو لومړني ګروپونه د کمو شهيدانو او زخميانو له ورکولو وروسته په شا شول، تانګونه پر تشو مورچو ور وختل خو په دوهمه ليکه کې مقاومت د لومړنيو ګروپونو له يو ځايني سره نور هم پياوړی شو.

له پاسه د ليرې ليرې سيمو مجاهدينو د اوږدو منزلونو په وهلو سره ځانونه د جګړې ډګر ته رارسول په دوړو اوګردونو کې به داسې پټ وو چې د سر او مخ په کاسه کې به يې يواځې ځيرو او عقابي سترګو د ناخوالو او بې وسيو تر شا د وروستې برې د سوبې او د ډاډ د اميد رڼا ښندله او د انتقام بحري ترې باد بېدل په اوږدو اوږدو کتارونو کې د مجاهدينو ليکې لکه د سيند څپې خوځېدلې چې مخ پر وړاندې روان وو. د سيمې په کوټ کوټ کې د غزا چيغه پورته وه او د غزا ډول وهل کېده.

سخت جنګ روان و د يو ټوپک په وړاندې ټانک، توپ او جهاز مقابله کوله چې اتومات يې بارونه چلول او د اور ږلۍ يې ورولې او هليکوپترونو د مجاهدينو د مورچلونو د پاسه راکټونه غورځول او ماشيندار يې چلول. جګړې دومره شدت غوره کړ چې د جنګ سيمې ته يې د مجاهدينو له پاره د ډوډۍ وړل ناممکن وګرځول. غازيان د دوو شپو نهر په سنګرونو کې د دښمن د اور او ګوليو مقابلې ته اوږې ورکړې او سينې سپر کړې وې.

د سيمې عمده پرابلم د بې وسلې وګړو و. هغوی چې يو ډول نه يو ډول وسله درلوده تکليف يې رونبا نه و او په سنګرونو کې په نره جنګېدل، ټپيانېدل او شهيدانېدل خو هغوی چې تش لاس وو هغوی څه کړي وای، چې د جنګ شدت او خپلې ځوانۍ او د خپلو همځولو سربښندنې او مېړانې ته به يې وکتل نو ځانونه به ورته پيکه ښکاره شول خو چې لاس يې تش



وونيا:

اوکه خدای مکړه سيمې ته قوه ننوځي هله به بيا څه کېږي.

د هرې قوې له آوازې راتګ او جنګ پروخت د بې وسلې وګړو همدغه ستونزه وه چې د دوی د وجود غوښې يې ويلولې.

د جنګ په لومړيو مياشتو کې به چې کله د قوې آوازه شوه نو خلکو به خپل واړه غرونو ته لېږدول. کورونه به ټول تش پاته وو او ترهغې به چې د قوې پته لګېده او بېرته به نه وه ستنه شوی هغوی به په غرونو کې تر ډېرو او کمرونو لاندې شپې تېرولې. خو وروسته بيا داسې نه وه سپين ږيرې به په کورونو کې وو وسله والو به جنګ کاوه، او بې وسله ځوانانو به په نژدې غرونو کې قوه څارله او ځانونه به يې ګوښه کول. مجاهدينو ځای پر ځای سړک بند کړی و. او همدغه ځايونو ته څېرمه به چې پوځ او ټانکونه د لارې په بېرته کولو اخته وو د مجاهدينو د بريدونو د پرمناسب وخت و. مجاهدينو به پر دغسې وختو او ځايونو کې ښه د خوند حمله پرې وکړه او خپل او د خپلو ټوپکو زړونه به يې له يوې مخې پرې تش او د پوځيانو پرتنو به يې سره مردک يخ کړل.

د جنګ زخميان د نژدې کليو په کورونو کې ځای په ځای کېدل او هلته د تور سرو له خوا د هغوی پالنه او د دارو درملو غم خوړنه کېده. داکلي او کورونه طبعاً د سړک غاړې ته نژدې پراته وو ځکه ليرې ځايونو ته د سخت جنګ په جريان کې د زخميانو لېږد ډېر ګران و.

په نژدې کليو او کورونو کې سره له دې چې د پوځيانو د بريد او تالاشۍ او د ټول کور او کلي د تباهي وېره وه د تورسرو له خوا په کلک هوډ او پخه اراده د زخميانو سمبالښت کېده.

له هرې ترې، کمر او شيلې څخه د جنګ، وينو او اور فوارې او ژړېغړا نده لمبې ختلې د هر کلي او هر کور د هر بودا، هرې تور سرې او هر ماشوم د ورانۍ، بربادۍ

ښخولي او په وينو کې لمبېدل د شهيدانو د سرلوړي کاروان بهير غازيان نور هم د انتقام اوکسات د جذبو توپاني څپو ته سپارل.

د جنګ په سرولمبو او د ګوليو په بڼلی کې تور سرو زخميان پخپلو کورونو کې ځای په ځای کول او د شېدو ډکې خمرې به يې ترنيمايي لارې د ماشومانو په لاس مجاهدينو ته وررسولې.

د جګړې پر دوهمه ورځ د مجاهدينو لومړني ګروپونه د ګڼو شهيدانو او زخميانو له ورکولو وروسته په شا شول، تا نکونه پر تشو مورچو ورختل خو په دوهمه ليکه کې مقاومت د لومړنيو ګروپونو له يو ځايېدو سره نور هم پياوړی شو.

له پاسه د ليری ليری سيمو مجاهدينو د اوږدو منزلونو په وهلو سره ځانونه د جګړې ډګر ته رارسول په دوړو او ګردونو کې به داسې پټ وو چې د سر او مخ په کاسه کې به يې يوازې ځيرو او عقابي سترګو د ناخوالو او بې وسيو ترشا د وروستی بری د سوبې او د پاو د اميد ږنا ښندله او د انتقام بځري ترې بادېدل په اوږدو اوږدو کتارونو کې د مجاهدينو ليکې لکه د سيند څپې خوځېدلې چې مخ پر وړاندې روان وو - د سيمې په کوټ کوټ کې د غزا چيغه پورته وه او د غزا ډول وهل کېده.

سخت جنګ روان ؤ د يوه توپک په وړاندې ټانک، توپ او جهاز مقابله کوله چې اتومات يې بارونه چلول او د اورڼلی يې ورولې او هليکوپترو د مجاهدينو د مورچلونو د پاسه راکټونه غورځول او ماشيندار يې چلول - جګړې دومره شدت غوره کړ چې د جنګ سيمې ته يې د مجاهدينو له پاره د ډوډۍ وړل نا ممکن وګرځول - غازيان د دوو شپو نهر په سنګرونو کې د دښمن د اور او ګوليو مقابلې ته او ږې ورکړې او سينې سپر کړې وې.

د سيمې عمده پرابلم د بې وسلې وګړو ؤ - هغوی چې يو ډول نه يو ډول وسله درلوده تکليف يې ږوښانه ؤ او په سنګرونو کې په نره جنګېدل، ټپيانېدل او شهيدانېدل خو هغوی چې تش لاس وو هغوی څه کړي وای، چې د جنګ شدت او خپلې ځوانی او د خپلو همځولو سربښندنې او ميړانې ته به يې وکتل نو ځانونه به ورته پيکه ښکاره شول خو چې لاس يې تش



ؤنو بيا :

او که خدای مکړه سيمې ته قوه ننوځي هله به بيا څه کېږي.

د هرې قوې له آوازې سره ټک او جنګ پروخت د بې وسلې وګړو همدغه ستونزه چې د دوی د وجود غوښې يې ويلولې.

د جنګ په لومړيو مياشتو کې به چې کله د قوې آوازه شوه نو خلکو به خپل واړه غرونو ته لېږدول - کورونه به تول تش پاته وو او تر هغې به چې د قوې پته لګېده او بېرته به نه وه ستنه شوی هغوی به په غرونو کې تر ډېرو او کمرونو لاندې شپې تېرولې. خو وروسته بيا داسې نه وه سپين ږيری به په کورونو کې وو وسله والو به جنګ کاوه، او بې وسله ځوانانو به په نژدې غرونو کې قوه څارله او ځانونه به يې ګوښه کول. مجاهدينو ځای پر ځای سړک بند کړی ؤ. او همدغه ځايونو ته څېرمه به چې پوځ او ټانکونه د لارې په بېرته کولو اخته وو د مجاهدينو د بريدونو د پر مناسب وخت ؤ- مجاهدينو به پر دغسې وختو او ځايونو کې ښه د خوند حمله پرې وکړه او خپل او د خپلو توپکو زړونه به يې له يوې مخې پرې تش او د پوځيانو پر تنو به يې سره مردک يخ کړل.

د جنګ زخميان د نژدې کليو په کورونو کې ځای په ځای کېدل او هلته د تور سرو له خوا د هغوی پالنه او د دارو درملو غم خوړنه کېده - دا کلي او کورونه طبعاً د سړک غاړې ته نژدې پراته وو ځکه ليری ځايونو ته د سخت جنګ په جريان کې د زخميانو لېږد ډېر ګران ؤ.

په نژدې کليو او کورونو کې سره لدې چې د پوځيانو د بريد او تالاشی او د ټول کور او کلي د تباهي وېره وه د تور سرو له خوا په کلک هوډ او پخه اراده د زخميانو سمبالښت کېده.

له هرې ترې، کمر او شېلې څخه د جنګ، وينو او اور فوارې او شر بغړا نده لمبې ختلې د هر کلي او هر کور- د هر بودا، هرې تورسرې او هر ماشوم د ورانی، بربادۍ

اومرګ انتظارته سترګې ختلې وې.

له بمباریو سره د کورونو د کړکیو ښیښې ماتېدې او له هرې سره به څمکه دامې ولړزېده چې سړی به ویل پر سر یې د کور چت او د ېوالونه راپرېوتل.

د مجاهدینو تلفات په هم‌مغه جبهه کې زیات وُ چې د سیمې په لومړۍ کرښه کې وه او وسله یې چړې او موشکش توپکونه وُ. پدغه جبهه کې به د سیمې وګړو پنځلس ورځې په نوبت سره پېره کوله او معین مجاهدین یې نه لرل.

قوه ترولسوالۍ ورسېده مجاهدین هم په یوه یوه نیمه ورځ کې بېرته سره راغونډ شول او ځانونه یې د یوه کاري برید له پاره چمتو کړل دلته وه چې د غه قوه به هم لکه مغکنۍ قوې تس نس کېږي او لکه د پخوا په شېر نه د مجاهدینو د ایماني پرتم پس وړاندې پوځیان یو ځل بیا د خپلو اسلافو په شېر سلامي کېږي او د حق د لارې د سربښندونکو د ډېرې په مقابل کې به یو ځل بیا د باطل او ناروا د سرټیټې او شرمېدلې ماتې صحنه تکرارېږي.

خو چې مجاهدین د همدغسې یوې حماسې په لار کې په خپلو لیکو کې ځای په ځای کېدل چې اوس به نو یوه بله و یا ړنه سو به او ړسوا شکست یوله بل سره سترګې لګوي او هو د یه ازموېي نود تانکونو کتار د دوړو او لوګړو په توپان کې د تیښتې غنه اخیستي وه او د غسې د حق د لارې سرتېرو خپل او د توپکو زړونه ډک پاته شول.



# ...او تول یې د روس پر ضد یوه کوټلي سرتاسري قیام ته چمتو کړي وو!

د ژمي سړه هوا چلېده. پر ځمکه د واورې سپینه بړستن غوړېدلې وه. خلک له کار او خوارۍ وزګار شوي وو، هسې هم د کلو ژمي په بېکارۍ او د ساده کلیوال محیط په مجلسونو کې تېرېږي ځکه خو پېښاوړ ته هماغسې د پخوا په شېر مجلسونه ګرم وو. د جوماتونو تا واخانې بنې تودې وې. د مجاهدینو په مرکزونو کې د پېښې لړۍ دوام درلود او کلي ته به چې هر مجاهد له پېرې راغیرګ شونو د جومات د تبی بس او پیتاوکې بند او به د هغې په لید نو کتنو بنه ګرم وُ.

خلک د پسرلي په تمه وُ او دایې نزه منلې وه چې د یخني په تېرېدو به مجاهدین پر کابل یو عنیز یرغل کوي ، په ځانګړې انداز کې به یې ترلیرې لیرې د اورې غورېدلی خادرته وکتل او بیا به یې په داد منه لهجه وویل چې پس وار د اورې لمن ورټوله شي بیا به ګورې چې پر کابل د اسلام بیرغ ورپېږي او نو د کابل په فتحې پاته غه دی تر ارغندي شا و خوا سیمه تر له مجاهدینو نیولې له قضا ما پښین ورو روسته د کابل کندهار په پادشاهي سړک بېله مجاهدینو

او مرګ انتظار ته سترګې ختلې وې.

له بمبارۍ سره د کورونو د کړکیو ښیښې ماتېدې او له هر یم سره به ځمکه داسې ولړزېده چې سړي به ویل پرسرېې د کور چت او دېوالونه راپرېوتل.

د مجاهدینو تلفات په همغه جبهه کې زیات وُ چې د سیمې په لومړۍ کرښه کې وه او وسله یې چړې او موشکش ټوپکونه وُ. پدغه جبهه کې به د سیمې وګړو پنځلس ورځې په نوبت سره پېره کوله او معین مجاهدین یې نه لرل.

قوه تر ولسوالۍ ورسېده مجاهدین هم په یوه یوه نیمه ورځ کې بېرته سره راغونډ شول او ځانونه یې د یوه کاري برید له پاره چمتو کړل دلته وه چې د غه قوه به هم لکه مغکنۍ قوې تس نس کېږي او لکه د پخوا په شېر به د مجاهدینو د ایماني پرتم پس وړاندې پوځیان یوځل بیا د خپلو اسلافو په شېر سلامي کېږي او د حق د لارې د سربښندونکو د هوډ په مقابل کې به یوځل بیا د باطل او ناروا د سرټیټي او شرمېدلې ماتې صحنه تکرارېږي.

خو چې مجاهدین د همدغسې یوې حماسې په لارکې په خپلو لیکو کې ځای په ځای کېدل چې اوس به نو یوه بله ویاړمنه سوبه او رسوا شکست یوله بل سره سترګې لګوي او هود یه ازموېي نود تانکونو کتار د دوړو او لوګو په توپان کې د تېښتې مخه اخیستې وه او د غسې د حق د لارې سرتېرو خپل او ټوپکونه دکڅ پاته شول.



# ...او تول یې د روس پرضد یوه کوټلی سرتاسري قیام ته چمتو کړي وو!

د ژمي سړه هوا چلېده. پرځمکه د واورې سپینه برېستن غوړېدلې وه. خلک له کار او خوارۍ وزګار شوي وو؛ هسې هم د کلو ژمی په بېکارۍ او د ساده کلیوال محیط په مجلسونو کې تېرېږي. ځکه خو پېټاو ته هماغسې د پخوا په څېر مجلسونه ګرم وو. د جوماتونو تاواخانې بنې تودې وې. د مجاهدینو په مرکزونو کې د پېرې لړۍ دوام درلود او کلي ته به چې هر مجاهد له پېرې راغبرګ شو نو د جومات د تبي سر او پیتاوکي بند او به د هغې په لید نوکتنو بنه کرم وُ.

خلک د پسرلي په تمه وُ او داې نړه منلې وه چې د یخنۍ په تېرېدو به مجاهدین پر کابل یو عنیز یرغل کوي ، په ځانګړي انداز کې به یې تر لېرې لېرې د اوږي غورېدلي خادرته وکتل او بیا به یې په داد منه لهجه وویل چې یو وار خو د واورې لمن ورټوله شي بیا به وګورې چې پر کابل د اسلام بیرغ رپېږي او نو د کابل په فتحه کې پاته څه دې تر ارغندي شا وخوا سیمه ټوله مجاهدینو نیولې، له قضا ما پښین ورو سته د کابل کندهار په پادشاهي سړک بیله مجاهدینو

څوک پرهم نشي وهلی.

له کابل سره د ولس رابطه بالکل غوڅه وه تګ راتګ بند و. * * * په
کابل کې رسمي مامورين زياتره په خپلو سيمو کې و او چې څوک مامور
به سيمې ته راغی نو د بېرته تګ اجازه يې نه درلوده.

خلک د مالګې، چای، بورې او نورو ضرورت ورلو مرهمونو موادو
له مخې کاختي سره مخ و له کابل څخه ورو دکو ته د دغه ورمواد و په
وړو سخت بنديز لګول شوی و او پدې نامه چې "تاسې اشرار چاغوی"
د سوداګرو توکي مالونه ضبطېدل.

په هدغه ورشرايطو کې يوه شپه چې د کابل راډيو په خپلو عادي
خپرونو لګيا وه او د امين د آمو او اسيند سندرې او د هغه ستونې شلول
يې خپرول د تاشکند راډيو له خپرو څخه د ببرک نارې سورې پورته شوې
او چې پرسبا يې خلک پيتا وو نو ته راو وتل نو د اخبره خوله په خوله کرځېده
چې کابل ته روسان راغلي او ببرک يې پر ټانک سپور راوستلی او د
کابل پرتخت يې کېنولی دی.

سيمې ته لدې ځکې هم د اوازې رارسېدلې وې چې په کابل کې څه -
کېدونکې دي ځکه د کابل رژيم د راډيو او تلويزيون له لارې خورو ځې مسلسل
د اعلان او خبرتيا خپرولو چې کله هم د خطر هغه مخصوص زنګ وغږول
شي نو سمدستي به دکورو تو څراغونه وژني او پرکړکيو به پردې ځوړوي.

د جدي پرشپږمه د مجاهدينو راډيو نژدې کړې ورځ خپرونې وکړې
او د حالاتو په اړه يې ولس ته خبرتيا ورکوله کله به هم چې سړي د کابل راډيو
نشرات او د مجاهدينو د راډيو خپرونې سره پرتله کړې نو له هماغه لومړې
ورځې څخه د مجاهدينو موقف. مورال، عظمت، برې او برلاسې او د ببرک د رژيم
اوبادار وارخطايي دوه نيمې. رسوايي او شرمېدلي ماته جوته وه د



روسانو يرغل د خلکو د جذباتو په انکار داسې کار وکړ لکه چې په دغه ساړه او
کرخت ژمي کې پټرول وشيندل شي.

اوس نو هيڅ ته هېڅ دول سوال او شک نه و پاته - کافر روس
پر وطن تيری کړی او په مقابل کې يې غزا او جهاد په هر مسلمان داسې فرض
دی لکه لمونځ او روژه د نژدې کليو مجاهدين په هماغه ساعت کې سرراغونډ
شول او د مرکز لوړې يې ونيوه ــــــ مرکز ته يې په بېړه بېړه ځانونه
ورسول څوله حالاتو او راتلونکې له پاره له پروګرام څخه ځانونه خبرکاندي.

مازيګر خواته د توپ پرپوځي ځوکۍ د مجاهدينو عمليات پيل شول. مجاهدينو
په ډېره قهرماني په نيم متر واوره کې چې نه سنګرو او نه کوم کمر او د برېد
وکړ په مېړانه وجنګېدل او د پوځي ځوکۍ زياتره برخې يې ونيولې.

له حملې مخکې مجاهدينو په لوډ سپيکر کې د ځوکۍ پر عسکرو او صاحبمنصبانو غږ
وکړ چې پر وطن روسي پوځونو تيری کړی اوس د اد هر افغان مکلفيت او
فريضه ده چې د دغه تيري په وړاندې ودرېږي، موږ او تاسې بنايي په ګډه
د خپل وطن او شرف دفاع وکړو له خپلو مجاهدو ورونو سره يو ځای شئ. تاسې
زموږ ورونه ياست موږ بايد له همدې لارې د خپل وطن او شرف د دښمن پرضد
په يوه ليکه کې مقاومت ته دوام ورکړو.

خو د هغوی ضمير ګوډاسې خپسې لاندې کړی و چې د وطن ناموس او
شرف په معنا نه پوهېدل او د اهرڅه يې له هغوی څخه هېرکړی وو او
له غلامانه ذهنيت او الحادي مغزو يې د آزادۍ احساس داسې کډه کړی و
چې بېرته راکرځېدل يې ناشونی و.

مجاهدينو هسې هم د يخنۍ له مخه تلوار درلود په راوسېدو
د خپلو بريد و نو د پراختيا او پياوړتيا طرحې ترلاس لاندې لرلې خو د روسي
پوځونو وحشيانه يرغل نو رهم دې ته اړکړل چې خپلې ليکې غښتلې او ځانونه

څوک پرهم نشي وهلی.

* * *

له کابل سره د ولس رابطه بالکل غوڅه وه تګ راتګ بند و. په
کابل کې رسمي مامورین زیاتره په خپلو سیمو کې و او چې څوک مامور
به سیمې ته راغی نو د بېرته تګ اجازه یې نه درلوده.
خلک د مالګې، چای، بورې او نورو ضرورت وړ لومړنیو موادو
له سختې کاختې سره مخ و له کابل څخه ورو کوټه د دغه ورمواد و په
وړن سخت بندیز لګول شوی و او پدې نامه چې "تاسې اشرار چاغوئ"
د سوداګرو توکي مالونه ضبطېدل.
په هدغه ورشرایطو کې یوه شپه چې د کابل راډیو په خپلو عادي
خپرونو لګیا وه او د امین د آمو او باسیند سندرې او د هغه ستونې شلول
یې خپرول د تاشکند راډیو له خپرو څخه د ببرک نارې سورې پورته شوې
او چې پرسبا یې خلک پېیتا وو نو ته راو وتل نو دا خبره خوله په خوله کرځېده
چې کابل ته روسان راغلي او ببرک یې پر ټانک سپور راوستلی او د
کابل پر تخت یې کېنولی دی.
سیمې ته لدې ځکې هم دا آوازې رارسېدلې وې چې په کابل کې څه -
کېدونکي دي ځکه د کابل رژیم د راډیو او تلویزیون له لارې خورونې مسلسل
دا اعلان او خبرتیا خپروله چې کله هم د خطر هغه مخصوص زنګ وغږول
شي نو سمدستي به د کورو تو څراغونه وژني او پر کړکیو به پردې ځړوي.
د جدي پر شپږمه د مجاهدینو راډیو نژدې کړې وه خپرونې وکړې
او د حالاتو په اړه یې ولس ته خبرتیا ورکوله کله به هم چې سره د کابل راډیو
نشرات او د مجاهدینو د راډیو خپرونې سره پرتله کړې نو له هماغه لومړي
ورځې څخه د مجاهدینو موقف، مورال، عظمت، بری او برلاسی او د ببرک د رژیم
او بادار وارخطایي دوه زړي، رسوایي او شرمېدلي ما ته جوته وه د



روسانو یرغل د خلکو جذباتو په انکار داسې کار وکړ لکه چې په دغه ساړه او
کرخت ژمي کې یې براوو تېلو وشیندل شي.
اوس نو هیڅ ته هیڅ ډول سوال او شک نه و پاته - کافر روس
پر وطن تیری کړی او په مقابل کې یې غزا او جهاد په هر مسلمان داسې فرض
دی لکه لمونځ او روژه د نژدې کلیو مجاهدین په هماغه ساعت کې سرغونډه
شول او د مرکز لوری یې ونیوه ـــــ مرکز ته یې په بیړه بیړه ځانونه
ورسول څو له حالاتو او راتلونکې له پاره له پروګرام څخه ځانونه خبر کاندي.
ماز یګر خواته د توپ پر پوځي څوکۍ د مجاهدینو عملیات پیل شول. مجاهدینو
په ډېره قهرمانۍ په نیم متر واوره کې چې نه سنګر و او نه کوم کمر او د بېرېد
وکړ په مېړانه وجنګېدل او د پوځي څوکۍ زیاتره برخې یې ونیولې.
له حملې ځکې مجاهدینو په لوډسپیکر کې د څوکۍ پر عسکرو او صاحبمنصبانو غږ
وکړ چې پر وطن روسي پوځونو تیری کړی اوس دا د هر افغان مکلفیت او
فریضه ده چې د دغه تیري په وړاندې ودرېږي، مونږ او تاسې بنایي په ګډه
د خپل وطن او شرف دفاع وکړو له خپلو مجاهدو ورونو سره یو ځای شئ، تاسې
زمونږ ورونه یاست مونږ باید له همدې لارې د خپل وطن او شرف د دښمن پر ضد
په یوه لیکه کې مقاومت ته دوام ورکړو.
خو د هغوی ضمیر لا ړنګ داسې خپسې لاندې کړی و چې د وطن ناموس او
شرف په معنا نه پوهېدل او د اهر څه یې له هغوی څخه هېر کړي وو او
له غلامانه ذهنیت او الحادي مغزو یې د آزادۍ احساس داسې کډه کړی و
چې بېرته راکرځېدل یې ناشوني و.
مجاهدینو هسې هم د یخنۍ په له مخه تلو او پسرلي په راوسېدو
د خپلو بریدونو د پراختیا او پیاوړتیا طرحې تر لاس لاندې لرلې خو د روسي
پوځونو وحشیانه یرغل نو رهم دې ته اړکړل چې خپلې لیکې غښتلې او ځانونه

سنه چمتو کړې ځکه له روسي جګړن پوځ سره مقابله راروانه وه دوی داهم اټکل کړی وچې روسي لښکرې به پردوی سختې حملې کوي او خونړۍ جګړه به دوام پیدا کوي. هلته روسانو ډیرک په واسطه یولړ مانورې ترلاس لاندې ونیولې خو بیا هم دینو ته دهمدغو مانورو اجرا یوڅه فرصت په لاس ورکړ.

رژیم د لوانو، خوږ، ولو مانورته د یره پراختیا ورکړه آوازې داسي وې چې روسانو داسي کیمیاوي او مکروبي بمونه راوړي چې د استعمال په صورت کې دسیمې کرد استوګن په سیل یا سرطاني ناروغیو اخته کېږي - داسې وسلې یې راوړي چې له کابله هر ځای چې وغواړي په غښته کولی یې شي پدې دول هر مرکز او حتی هرکور په آساني سره له منځه وړلی شي - داسې بمونه ورسره دي چې دیوې سیمې وګړي د یوې ورځې له پاره بې هوښه کوي - دوی به سیمې ته ننوزي او په آساني سره به ټرې وسلې ټولوي او هغوی به نیسي.

داسې تربیه شوي سپي ورسره دي چې د هر دول وسلې او نورو موادو پته لګولی شي.

دا هغه آوازې او پروپاګنډ وچې د زعرېله یې درېنډوه، ددې په څنګ کې یې د تزویر دا مونه هم غوړول او هغه داچې اوس قدرت د پرچم دلې ته رسېدلی داد خلقیانو غونډی وحشیان ندي چې ووژنه او جېل ته واچوه - دا ښاري او متمدنه ډله ده، لکه دخلقیانو دغرو او شپنو زامن ندي دوی هرڅه لیدلي په غمو غمو کوروونوکې لوی شوي او بله داچې دخلقیانو له وحشیانه اعمالو تجربه هم لري. چېله ببرک د یوه غټ جنرال زوی دی له خلقیانو سره د پرچمیانو مخالفت هم له همدې امله وچې دهغوی دوحشیانه اعمالو او وژنو نیونو مخالفت یې کاوه.

دوی په لاروکې د تالاشي لړۍ تریوه وخته ختمه کړه ورېدګر ته له کابل څخه دغذایي او نورو لوازمو راوړلو موټرې د ولږه مانه بندېزونه لیرې کړي شول. خو د ولس په مغزوکې د «روس راغلی» خبره ناسته وه - روس کافر دی او دغه



کافر روس په یوه اسلامي هیواد تیری کړی او س که روس دوی ته د نیوبارک او پاریس غونډی ترقي هم ورکړي دوی یې نه مني - نه یې پرېږدي، مقابله ورسره کوي وژني، او ځان پرې وژني.

د ولس ذهن کې د روس کلمې او پر افغانستان تیرې هیڅ دول توجیه نشوای منلی - روس چې خدای نه مني - له دین او مذهب څخه منکر دی - بخارا او سمرقند یې نیولي هلته یې جوماتونه وران کړي او په هو ټلونو او شرابخانو یې بدل کړي، دغو خبرو او پېښو د ولس په حافظه کې داسې ځای نیولی وچې د دیپلوماسۍ څخه د سیاست لوبو او مانورو هغه نشوای ترې هیرولی. په رښتیا هم چې د ولس په حافظه د یره غښتلې وې.

اوس نو د نرواو ښځو، وړو او زړو ټولو په ذهن کې د روس او روسي یرغل فاجعه د روس د خدای نه منلو او د بخارا او سمرقند سانحې کلکې منګولې ښخې کړې وې چې دوی یې هیڅ کړاو نه پرېښودل او دغه ورېې ټول د روس او د هغوی د برېښو پرځند یوه کوټلي سرتاسري اونه ماتېدونکي قیام او مقاومت ته چمتو کړي و، داسې مقابله او مقاومت چې بریې یې په تقدیر کې کښل شوی و.

سنه چمتو کړي ځکه له روسي جګړن پوځ سره مقابله ړاروانه وه دوی داهم اټکل کړی
و چې روسي لښکرې به پر دوی سختې حملې کوي او خونړۍ جګړه به دوام پیدا کوي.
هلته روسانو ذبیرک په واسطه یو لړ مانورې تر لاس لاندې ونیولې خو بیا هم دېنو
ته د هم‌دغو مانورو اجرا یوڅه فرصت په لاس ورکړ.

رژیم د لوانو وخوړو لو مانورو ته ډېره پراختیا ورکړه آوازې داسې وې چې
روسانو داسې کیمیاوي او مکروبي بمونه راوړي چې د استعمال په صورت کې
د سیمې کرد استوګن په سیل یا سرطاني ناروغیو اخته کیږي - داسې وسلې یې
راوړې چې له کابله هرځای چې وغواړي په څښنه کولی یې شي پدې ډول
هر مرکز او حتی هر کور په آسانۍ سره له منځه وړلی شي - داسې بمونه ورسره
دي چې دیوې سیمې وګړي دیوې ورځې له پاره بې هوښه کوي - دوی به
سیمې ته ننوزي او په آسانۍ سره به ټرې وسلې ټولوي او هغوی به نیسي.

داسې تربیه شوي سپي ورسره دي چې د هر ډول وسلې او نورو موادو
پته لګولی شي.

دا هغه آوازې او پروپاګنډ و چې د زور پله یې دربنده وه، ددې په څنګ
کې یې د تزویر دامونه هم غوړول او هغه دا چې اوس قدرت د پرچم ډلې ته رسیدلی
دا د خلقیانو غوندې وحشیان ندي چې ووژنه او جېل ته واچوه - دا ښاري او متمدنه
ډله ده، لکه د خلقیانو د غرو او شپنو زامن ندي دوی هرڅه لیدلي په غمو غمو
کورونو کې لوی شوي او بله دا چې د خلقیانو له وحشیانه اعمالو تجربه هم لري. پڅله
ببرک د یوه غټ جنرال نوی دی له خلقیانو سره د پرچمیانو مخالفت هم له همدې
امله و چې د هغوی د وحشیانه اعمالو او وژنو نیونو مخالفت یې کاوه.

دوی په لاروکې د تالاشۍ لړۍ ترېوه وخته ختمه کړه ورد ګوته له کابل
څخه د غذایي او نورو لومړنیو موادو له وړلو څخه بندیز و نه لیرې کړی شول.
خود ولس په مغزو کې د «روس راغلی» خبره ناسته وه - روس کافر دی او دغه



کافر روس په یوه اسلامي هېواد تیری کړی او س که روس دوی ته د نیو یارک
او پاریس غوندې ترقي هم ورکړي دوی یې نه مني - نه یې پرېږدي، مقابله ورسره
کوي وژني، او ځان پرې وژني.

د ولس ذهن کې د روس کلمې او پر افغانستان تیري هیڅ ډول توجیه نشوای
منلی - روس چې خدای نه مني - له دین او مذهب څخه منکر دی - بخارا او سمرقند یې
نیولي هلته یې جوماتونه وران کړي او په هوټلونو او شراب‌خانو یې بدل کړي،
دغو خبرو او پېښو د ولس په حافظه کې داسې ځای نیولی و چې د دیپلوماسۍ کړشمو
د سیاست لوبو او مانورو هغه نشوای ترې هېرولی. په ربښتیا هم چې د ولس‌ونو
حافظه ډېره غښتلې وي.

اوس نو د ښاو ښځې واړه او زاړه ټول په ذهن کې د روس او روسي یرغل فاجعه
د روس د خدای نه منلو او د بخارا او سمرقند ساتنې کلکې منګولې ښخې کړې وې چې
دوی یې هیڅ کله نه پرېښودل او دغه ورېي ټول د روس او د هغوی د برېښو پرضد
یوه کوټلې سرتاسري او نه ماتېدونکې قیام او مقاومت ته چمتو کړي و داسې مقابله
او مقاومت چې بری یې په تقدیر کې کښل شوی و.

دقلم مجله به هڅه کوي چې د افغانستان دجهاد ، قیام او انقلاب
بېلابېل اړخونه ، بېلابېلې سیمې او بېلابېلې څنډې او ګوښې ګوټې
او د دریو لوستونکو له پاره یې روښانه کړي .

دادې په دې ګڼه کې هم د هیواد په یوه څنډه کې د اسلامي
پاڅون او اسلامي اوښتون د شروع او پیل یو ریښتینی او
واقعي تصویر وړاندې کوي او په همدې سیمه کې به قیام د قوام او
پراختیا په لور ځېږي چې پرله پسې به خپرېږي لیکوال په خپل پیاوړي
قلم او خوږه ادبي ژبه د تاریخ خوږ کړي او بوختوونکي کړي چې
کله کله لوستونکي ته سودا وروولاړه کړي چې ګني ده به واقعیتونه
افسانوي کړي وي خو داسې نه ده هرڅه واقعي دي فقط د لیکوال
ژبه یې ادبي او جذابه ده او محتوای یې د واقعیتونو
او پېښو شوو پېښو انځوردی .

موږ یې تاسو درانه لوستونکي لوستلو ته رابولو
او ګران لیکوال یې بشپړولو او قدم په قدم په وړبنیمنه
ادبي لاره باندې وړاندې تللو ته !

په مینه

" اداره "



د ګرمۍ پیل و څو د لمر شغلې د سرې په تندي د اسې تېزې
لګېدې لکه تیرې ستنې ، له ډیرې تودوخې لـه څمکې تپونه ختل ، د
آسمان مخ سپیرو او خړو ګردونو پوښلی و د دریې په منځ کې سپین
هرام روان و ، د ګنګ چنارونه د شمال له څپو سره د اند یښنو په تال
یوه او بله خوا زنګېدل ، د پاختې سوې کوکې له بل هر وخت نه زیاتې
سوځنده او ویرمنې شوې وې ، چوغکـــــــــــو به د اسې شور جوړ
کړی و لکه چې د سیمې د لس کونو څوانانو او مشرانو په نیونه
تږي تم کیدو او شکنجو د ماتم ساندې غږولې .

بزګران په مات زړه په پټیو او کروندو کې په کار لګیا وو ،
د خپلو خونبو د بیګار له لاسه مجبور وو چې د دوو دریو ورځو
کار په یوه ورځ کې سرته ورسوي ، د غسې به له بلې خوا په هفته کې
یو دوه ځله د جبري مارشونو ګډون هغوی له کار او مزدورۍ

# ... اوښکې په غوڅنګ وي!

بیا هم د اسد میاشت وه- یوه درنده، ګرمه، اوږده او دوبه
شپه چې هېڅ سبا کېده نه.

ستورې بوله شپه تت تت او پټ پټ کېدل، نن آسمان روڼ او
تک شین نه معلومېده- سپوږمۍ د دوچن آسمان پروړې پتهې وروورو
او په نه زړه پل اخیست داسې چې هغه هم د دغه دوچنې شپې په -
سبا کېدو نه وې خوښه- نن د سپوږمۍ وړ ښېښمینو وړانګو هغه ځواني
ځلا نه درلوده، داوړتکه سره برښېښېده لکه چې همدا اوس د
وینو له سیند څخه لېبه لغړه راختلې وي.

بیا هم دروژې میاشت وه د ۱۳ مې روژې- پښتنې د هغه داسې یوې
هیبتناکې او درندې شپې د تېرېدو مزې را لندول او یوې ویرجنې
او غملړلې ورځې ته یې ځه پرانستله.

یوه مهیب سکوت یوې ژورې چوپتیا او یوې درندې خاموشې
په زړه ونو او خولو لاسونه ایښي وو- اوږدو سوچونو او بوږنو ونګو



خیالونو په سرونو او مغزو وزرونه غوړولي وو.

نن د پښېمیني په چرګ بانګونو کې هغه ځواني کشش نه لیدل کېده
داسې ښکارېده لکه چې د چرګانو په مړو یو هم چا منګولې ښخې کړې وي -
د سپوږمۍ غږونه یې تپ توپ وو او یواځې ستغې او سوړې انګولا به یې د درې
په اوږدو کې څه ویرونکې انګازې خپرې کړې. د سیند د څپو شور او زوږ
نه وو. داسې معلومېده چې نن شمال هم په درانه خوب بیده دی او د ونو له
پاڼو سره کوتې نه خوبوې سرې به ویل چې نن دا هرڅه یوه خوځښت
وېرې پخپله غېږ کې نغښتي دي او یواځې همدا ستړې او ناکراره انسانان
دي چې خپلې خوانیمرګه اوښکې هیلې یې آرام نه پرېږدي- بوږنو نکو
سوچونو په سر اخیستي- ترخو خاطرو او یادونو یې مخې ته داړې جنګې
کړې او پر هر څرلي خیالونه یې ستړګې پټېدو او دې ته نه پرېږدي.

د دغې غمجنې شپې درونه سکوت د درې په اوږدو کې د سهار
د لمانځه یوه پسې اذانونو مات کړ او د ستوماته بنګرانوله پاره
یوه بله ستړې ورځ د ګاڼ او مزدورۍ د درانده پېټي او چتولو
ته رادبره شوه.

دغې شپې د هغوی هېڅ دمه نه وه جوړه کړې د دغې شپې
د ناکراره مخوقو هغوی پر اوږ و دیوه دروند بار نه هم درنده
اوږه مولوونکې تامېده او اوس بیا د یوې ستوماته او سرګردانه ورځې
راختل له هغوی څخه بیا د آرام ساه اخیستله.

داو داسه له پاره کلیوال یو یو دو یا لې غاړې ته راتلل، داو بو
نا اسنده وله حرکت او د څپو ناکراره آوازونو د خلکو د ستوماني او کړاوچن
ژوند ویرجنې نغمې غږولې او د دوی پر دردمند او خوار ژوند یې
یوه بله غمونکې ورځ ور اضافه کوله په لنډه شېبه کې نیمایي جومات ډک

# . . . اوښې په غوږ ځنګ وي!

بیا هم داسد میاشت وه - یوه درنده ، ګرمه ، اوږده او دوه په شپه چې هېڅ سبا کېده نه .

ستوري ټوله شپه تت تت او پټ پټ کېدل ، نن آسمان روڼ او تک شین نه معلومېده - سپوږمۍ د دوپچن آسمان پروېړ تتې ورووړو او په نه زړه پل اخیست داسې چې هغه هم د دغه دوپچنې شپې په سبا کېدو نه وې خوښه - نن د سپوږمۍ وړ ښېښو وړانګو هغه ځوانۍ ځلا نه درلوده ، داوړتکه سره بریښېده لکه چې همدا اوس د وینو له سیند څخه لېه لغړه راختلې وي .

بیا هم دروژې میاشت وه د ۱۳ مې روژې - ښېښي دهمداسې یوې هیبتناکې او درنې شپې د تېرېدو مزې رالنډول او یوې ویرجنې او غملړلې ورځې ته یې ځنځه پرانستله .

یوه مهیب سکوت یوې ژورې چوپتیا او یوې درنې خاموشۍ په زړونو او خولو لاسونه ایښې وو - اوږدو سوچونو او بوږنو ونکو



خیالونو په سرونو او مغزو وزړونه غوړولي وو .

نن د پېشمینې په چرګ بانګونوکې هغه ځوانۍ کشش نه لیدل کېده داسې ښکارېده لکه چې د چرګانو په مریو هم چا منګولې ښخې کړې وي - د سپوږمنو نه یې تېټ ټوپ وو یواځې ستغې او سوې انګولا به یې د درې په اوږدو کې څه ویروونکې انګازې خپرې کړې . د سیند د څپو شور او زوږ نه وو داسې معلومېده چې نن شمال هم په درانه خوب بیده دی او د ونو له پاڼو سره کوتې نه خوږوي سرې به ویل چې نن داهرڅه یوه خوږجن ویرېخپله غېږکې نغښتي دی او یواځې همدا ستړې او ناکراره انسانان دي چې خپلې ځوانیمرګه اوتنکۍ هیلې یې آرام نه پرېږدي - بوږنوونکو سوچونو په سر اخیستي - ترخو خاطرو او یادونو یې مخې ته دارې جنګې کړي او پرهړژلي خیالونه یې سترګې پټېدو او دې ته نه پرېږدي .

د دغې غمجنې شپې د روند سکوت د درې په اوږدو کې د سهار دلماځه یو په بل پسې اذانونو مات کړ او د ستومانه بزګرانو له پاره یوه بله ستړې ورځ دکار او مزدورۍ د درانده پېټي او چېټولو ته رادبره شوه .

دغې شپې د هغوی هېڅ دمه نه وه جوړه کړې د دغې شپې د ناکراره لحو ځوښیو د هغوی پر اوږو دیوه ډېر درانده بار نه هم درنده او زړولوونکې تمامېده او اوس بیا د یوې ستوماند او سرګردانه ورځې راختل له هغوی څخه بیا د آرام ساه اخیستله .

داو داسه له پاره کلیوال یو یو دوه یاني غاړې ته راتلل ، داو بو نااننه وله حرکت او د څپونا کراره آوازونو د خلکو د ستومان او کړاوجن ژوند ویرجنې نغمې غږولې او د دوی پر دردمند او خوار ژوند یې یوه بله غمونکې ورځ وراضافه کوله په لږه شېبه کې نیمایي جومات ډک

شو- لمونځ د شو- دعا کاني وشوې، وظیفې او تلاوتونه خلاص شول.
خلک راولاړ شول راووتل. د سهار خړ لا نه وه ایسته شوې د غرونو په
څوکو لا پروني پرېوتي لمر خپلې وړانګې پوره نه وې غوړولې چې کړ سهار شو
دا کړ سهار لکه د خطر زنګ په ټوله دره خپور شو. شپږ جوړې جیټ الوتکې
په دوو موازي کرښو درې ځله په ټوله دره راغبرګې شوې.
اوس نو د ټولو زړو ومنله چې د قوې د راتګ دا څو ورځنۍ اوازې حقیقت
ته نږدې کېدونکې دي.

اوس نو د هر یوه زړه ته ولوېده چې دا یوه اونۍ له سهاره تر ماښامه
اکتشافي الوتکو هسې دا ټوله سیمه تر نه لاندې باندې کوله.
سترګې او خبرې ټول سوال سوال وې چې څه به کېږي. له څه سره
به مخامخ کېږي او څه به پېښ راځي.
د سوالونو او اندېښنو په دغه کشمکش کې وسله وال مجاهدین په یوه
لحظه کې د جومات مخې ته راغونډ شول تا به ویل له هر یوه سره مخابره
ده او چا د تیارسۍ او برید قومانده ورکړې ده.

بې له دې چې بحث او جدل وکړي، بې له دې چې سر وپوښتي،
بې له دې چې د حزب او قوماندان نوم واخلي، ټول له یوې مخې او له یوه
پلوه راغونډ شول. کمربندونه یې وتړل، د ټوپکو جوړې یې ډکې
کړې، ټوپکونه یې سنبه وکتل، خپلې یې کش کړې. ملاوې یې ټینګې
کړې پټکي یې سم کړل او پایڅې یې بېرته وهلې. د حرکت لوری معلوم
و. د دغرې ډګر ښکاره و او د قربانۍ او ازموینې میدان را د بره. داسې لکه
چې څوک بولنه ورکوي، وخت غږ کوي، جذبات ورته لوری ښیي،
احساس یې قدمونه ښکلوي، ولولې ورته لار جاروکوي - حالات یې د انتقام
او مقابلې ولولې توپاني کوي او وینې ورته د تویېدو پېشکشونه کوي.



نه دا خبره وه چې ته څوک یې او هغه څوک - دا د کوم تنظیم دی او
هغه د کوم. ...
هر څه څرګند و، هدف روښانه و، لار سپېڅلې او نیغه وه د دښمن
معلوم و، مقابله فرض وه او د شهادت هیله حتمي. سړي فکر کاوه چې
یوه روحاني ترون، یوې قلبي رابطې، یوې آفاقي قوماندې، یوه
آسماني غږ او یوه الهامي احساس هغوی ټول دغه یوه ځای، یوې
خبرې، یوې پرېکړې، یوه دریځ او یوه سنګر ته بولنه ورکړې.
د جبهې لومړنیو کرښو ته د مجاهدینو کتارونه وخوځېدل-
دوړې پورته شوې - د تکبیر چیغو دره په سر واخیسته - د حق د شمعې
پتنګانو سرونه په لاس کې د قربانۍ ډګر ته په مینه او جوش یو له بل مخکې
وړاندې کېدل ته به وایې د چا په واده روان دي د خوښۍ ډزې کوي
او د ساتېرۍ نخښې ولي.
نن دغه لار داسې درنده، څو او قوي قدمونو لنډوله چې منزل
یې د ایثار او سربښندنې هغه تلپاته مقام و چې د حق شمع یې د خپلو
وینو په تېلو بله ساتله.
نن په سینو کې د زړونو دړزا داسې ناکراره وه لکه چې د سرو
ګولیو مخې ته په ډېر هوس له سینې د باندې راوځي.
د جذباتو او احساساتو یو توپان را الوتلی و، یو سیلاب و چې په -
غړېدو راروان و، یوه سمندر دې خوا مخه اخیستې وه د انسانانو یو
څپانده سمندر په دره کې په خوځېدو و؛ موجونو غر غرې وهلې،
څپې په غورځنګ وې قربانۍ سر په تلي کې ولاړې وې او د آزادۍ
یوه طغیاني وږمه په ټوله دره کې په چلېدو وه.
سړي فکر کاوه چې ټوله دره لړزېږي او هر کمر، هره تیږه، هر

شو - لمونځ وشو - دعاګانې وشوې، وظیفې او تلاوتونه خلاص شول. خلک راولاړ شول راووتل. د سهار خپړه لا نه وه ایسته شوې د غرونو په څوکو لا پروني پرېوتي لمر خپلې وړانګې پورته نه وې غوړولې چې کرسهار شو دا کرسهار لکه د خطر زنګ په ټوله دره خپور شو. شپږ جوړې جیپ الوتکې په دوو موازي کرښو درې ځله په ټوله دره راغبرګې شوې.

اوس نو د ټولو زړو منله چې د قوې دراتګ دا څو ورځنی اوازې حقیقت ته نږدې کېدونکې دي.

اوس نو د هر یوه زړه ته ولوېده چې دا یوه اونۍ له سهاره تر ماښامه اکتشافي الوتکو هسې دا ټوله سیمه نه لاندې باندې کوله.

سترګې او څېرې ټول سوال سوال وې چې څه به کېږي - له څه سره به مخامخ کېږي او څه به پېښ راځي.

د سوالونو او اندېښنو په دغه کشمکش کې وسله وال مجاهدین په یوه لحظه کې د جومات مخې ته راغونډ شول تا به ویل له هره یوه سره مخابره ده او چا د تیارسۍ او برید قوماندې ورکړې ده.

بې له دې چې بحث او جدل وکړي، بې له دې چې سره ووېښي، بې له دې چې د حزب او قوماندان نوم واخلي، ټول له یوې مخې او له یوه پلوه راغونډ شول - کمربندونه یې وتړل، د ټوپکو جوړې یې دکې کړې، ټوپکونه یې سنبه وکتل، خپلې یې کش کړې - ملاوې یې ټینګې کړې، پټکي یې سم کړل او پایڅې یې بډ وهلې. د حرکت لوري معلوم و د غرې ډګر ښکاره و او د قربانۍ او ازموېښت میدان راد برو. داسې لکه چې څوک بولنه ورکوي، وخت غږ کوي، جذبات ورته لوري ښيي، احساس یې قدمونه ښکلوي، ولولې ورته لار جاروکوي - حالات یې د انتقام او مقابلې ولولې تودوي او وېښي ورته د تویېدو پېشکشونه کوي.



نه دا خبره وه چې ته څوک یې او هغه څوک - دا د کوم تنظیم دی او هغه د کوم ...

هر څه څرګند و، هدف روښانه و، لار سپېڅلې او نېغه وه د دښمن معلوم و، مقابله فرض وه او د شهادت هیله حتي. سړي فکر کاوه چې یوه روحاني تړون، یوې قلبي رابطې، یوې آفاقي قوماندې، یوه آسماني غږ او یوه الهامي احساس هغوی ټول دغه یوه ځای، یوې خبرې، یوې پرېکړې، یوه دریځ او یوه سنګر ته بوللي ورکړې.

د جبهې لومړنیو کرښو ته د مجاهدینو کتارونه وخوځېدل - دوړې پورته شوې - د تکبیر چیغو دره په سر واخیسته - د حق د شمې پتنګانو سرونه په لاس کې د قربانۍ ډګر ته په مینه او جوش یوله بل مخکې وړاندې کېدل ته به وایې د چاپه وړ روان دي د خوښۍ زړي کوي او د ساتېرۍ نخښې ولي.

نن دغه لار داسې ډرندو، پخو او قوي قدمونو لنډوله چې منزل یې د ایثار او سربښندنې هغه تلپاته مقام و چې د حق شمه یې د خپلو وینو په تېلو بله ساتله.

نن په سینو کې د زړونو دړزا داسې ناکرار وه لکه چې د سرو ګولیو مخې ته په ډېر هوس له سینې د باندې راوځي.

د جذباتو او احساساتو یو توپان را الوتلی و یو سیلاب و چې په غړېدو راروان و یوه سمندر دې خوا مخه اخیستې وه د انسانانو یو څپانده سمندر په دره کې په خوځېدو و؛ موجونو غرغرې وهلې، څپې په غورځنګ وې قربانۍ سر په تلي کې ولاړې وې او د آزادۍ یوه طغیاني وږمه په ټوله دره کې په چلېدو وه.

سړي فکر کاوه چې ټوله دره لړزېږي او هر کمر، هره تېږه، هر

ناو او هر بوټي د آزادۍ د دغه سرښندونکي لښکر قدمبوسۍ ته حاضر
رسوي .

کولۍ وچلېدلې ، ټانکونه وغورځېدل او مزايل په غرمبېږو شول ،
سيمه داورلمبه شوه دکوليو باران او د بمونو باران په اوريدو شو دآسمان
پرمخ دالوتکو ټولي او کتارونه داسي معلومېدل لکه چي هوايي مرغان
پدغه کردجنه فضا کي دخپل سفر لار لټوي دوړي شوي ، لوګي شول
نه دي بل غږ اوريدل کېده او نه يو بل سره ليدلی او پېژندلی شوای .

جېټ بمباري کولي آتشي ... نپام ... اوکيمياوي بمونو داسي (مخنزحون)
کړي ؤ لکه چي ځمکه يې سره په بلغ اروړلي وي هرسړي فکر کاوه چي همدا
دې ژوند دی نور به نو دځمکې پرمخ هيڅ هم نه وي پاتي .

هليکوپټرو راکټونه اوروړل او کوماندويي پوځيان يې کوزول
ترمازديکره پرهره غونډۍ ، هرناو او هره حاکمه نقطه دکوماندويي
پوځيانو بهير راماتو ؤ . او په هره غونډۍ او هرځوړ کي پنډ ووتن له
دبرو او کمرونو پوځيان زيات معلومېدل - هره ډبره به چي سړي
وليدلی شوای نو به بيورېده او پوځي به تري جوړ شو له الوتکو ټانکونه
او نورې درندې وسلې هم کوزې کړې شوې ، ټانکونه ، توپونه ،
ميزايل او ... تا به ويل له هرناو او غونډۍ سره يو يو ځرقي او غونډ اړولي
ويا .

بنا يي پوځي متخصصين او عسکري ماهرين پې ونه منسي - دوی
به دخپلو شمېرنو او فرضيو له مخي حساب کوي - دځمکي ساحه به اټکلوي
وايي به ، دا اراضي د دومره لوی پوځ او وسلو ايجاب نه کوي عسکري
قوانين دا نشي منلی دا اراضي د دومره ټانکونو او پوځيانو ګنجايش نلري
او . . .



خو دا د ستر کو ليدلی واقعيت دی چي په دې کابل پوځي افسرانو هم
تصديق کړی . د متخصصينو او ماهرينو شمېرني او فرضيې خو هغه وخت
هم اپوته ، غلطې او ناسمې وختي کله چي د روسي پوځونو له يرغل سره
دوی په دوو درېو مياشتو کي د مقاومت د تکولو او له منځه وړلو پېشبيني
کړې وه او د افغانانو غورځور او د مقاومت يې د روس د منظم او مجهز پوځ
په مقابل کي انتحار او خودکشي ګڼله ، او که اصلاً دغه شمېرنو فرضيو
او نظرياتو ته کتل شوي وای نو د افغانستان جهاد بايد له سره پيل شوی
او نه وای تر درشل هډو رسيدلی نه وای .

د افغانستان جهاد خو د نړۍ د ټولو شمېرني او اټکلونه اپوته ونيول
د ټولي نړۍ خلکي وپيتي او ستجوني يې ناسمي ثابتي کړي او ټول نظريات او
موضعګيري يې بدلون ته اړ کړي .

د دغه مقاومت هڅونه ، وسله ، تکيه او قوت ، هغه مادي وسايل او
مهمات ندي چي د پوځي زېرمولو تشيدو سره په شا شي او ماتي وخوري د
دغه جنګ مهمات نه خلاصېږي ، وسله يې له کاره نه لوېږي او قوت يې
نه کمزوری کېږي ځکه خو يې شوميخانيکي او نظري د رسونه او نظريات
ستقبل نشي ټاکلی .

دلته ايمان ، عقيده ، تصميم او اراده د روس غونډي ستر او وحشي قوت په
ګونډو کوي - د وارسا بلاک لړزوي ، نړۍ ته د استعمار ماتوني ژوندۍ درس
ورکوي او د روس د نه ماتيدني طلسم دړي وړي کوي او د نړۍ اسکرلو
او ځپلو ته په ګونډو کوي چي د وېښې په بيه آزادي حتماً اخيستلی شي .



ناو او هربوټي د آزادۍ د دغه سربښندونکي لښکر قدمبوسۍ ته حاضر رسوي.

کولۍ و چلېدلې، ټانکونه وغړېدل او مزایل په غړمبېدو شول، سیمه داوږلمبه شوه د کولیو بزلی او د بمونو باران په اورېدو شو. د آسمان پرمخ دالوتکو ټولۍ او کتارونه داسې معلومېدل لکه چې هوایي مرغان پدغه کړجنه فضاکې دخپل سفر لار ورکه کړي وي دورې شوې، لوګي شول نه دیوبل غږ اورېدل کېده او نه یوبل سره لیدلی او پېژندلی شوای.

جېټ بمبارۍ کولې آتشي [illegible] نپالم [illegible] او کېمیاوي بمونو داسې محشر جوړ کړی و لکه چې ځمکه یې سر تر پایه په بل غ اړولې وي هرسړي فکر کاوه چې همدا دې ژوند دی نور به نو د ځمکې پرمخ هېڅ هم نه وي پاتې.

هلیکوپټرو راکټونه اوروړل او کوماندویي پوځیان یې کوزول ترمارديکو پر هره غونډۍ، هرناو او هره حاکمه نقطه دکوماندویي پوځیانو بهیر رامات و. او په هره غونډۍ او هرخوړکې پنډوونه له ډېرو او کمرونو پوځیان نږات معلومېدل - هره ډېره به چې سرې ولیدلی شوای نو به بنوربېده او پوځي به تر یې جوړشو له الوتکو ټانکونه اونورې درندې وسلې هم کوزې کړې شوې، ټانکونه، توپونه، میزایل او... تابه ویل له هرناو او غونډۍ سره یو یو ځرقې او غونډ اړولي وي.

بنایي پوځي متخصصین او عسکري ماهرین یې ونه منې - دوی به دخپلو شمېرنو او فرضیو له مخې حساب کوي - د ځمکې ساحه به اټکلوي وایي به، دا اراضي د دومره لوی پوځ او وسلو ایجاب نه کوي عسکري قوانین دا نشي منلی دا اراضي د دومره ټانکونو او پوځیانو ګنجایش نلري او...



خو داد سترګو لیدلی واقعیت دی خپله یې د کابل پوځي افسرانو هم تصدیق کړی. د متخصصینو او ماهرینو شمېرنې او فرضیې خو هغه وخت هم اړوېته، غلطې او ناسمې وختې کله چې د روسي پوځونو له یرغل سره دوی په دوو دریو میاشتو کې د مقاومت د ټکولو او له منځه وړلو پېشبینې کړې وه او د افغانانو غوړاو او ورمقاومت یې د روس د منظم او مجهز پوځ په مقابل کې انتحار او خودکشي ګڼله، او که اصلاً دغه شمېرنو، فرضیو او نظریاتو ته کتل شوي وای نو د افغانستان جهاد باید له سره پیل شوی او بریې تر دې شلې هدوهسېدلی نه وای.

د افغانستان جهاد خو د نړۍ د ډېرې شمېرنې او اټکلونه اپوته ونیول د ډېرې خلکې وهېنې او سنجونې یې ناسمې ثابتې کړې او ډېر نظریات او موضعګیرۍ یې بدلون ته اړ کړې.

د دغه مقاومت هڅونه، وسله، تکیه او قوت، هغه مادي وسایل او مهمات نه دي چې د پوځي زېرمو له تشېدو سره په شا شي او ماتې وخوري د دغه جنګ مهمات نه خلاصېږي، وسله یې له کاره نه لوېږي او قوت یې نه کمزوری کېږي ځکه خو یې شومېخانیکي او نظري درسونه او نظریات مستقبل نشي ټاکلی.

دلته ایمان، عقیده، تصمیم او اراده د روس غونډې سترا و وحشي قوت په ګونډو کوي - د وارسا بلاک لړزېږي، نړۍ ته د استعمار ماتونې ژوندي درس ورکوي او د روس د نه ماتېدونې طلسم دړې وړې کوي او د نړۍ اسکېرلو او محیلو ته په ګوته کوي چې د وېښې په بیه آزادي حتماً اخیستلی شي.



# ... او هغوی خپل ارمان ته ورسیدل

فضا تور او دوړو لاندې کړې وه - د لمر سترګه سمه نه ښکاریده - د بارود
سوی بوی له هر لوري پورته کېده - له هرې خوا د اور بیاران او د ګولیو ږغ
اوریده، په سترګو کې اوښکې وچې وې خو وینې بهیدلې - سرونه ستي کېدل -
سینې غلبیل کېدلې - هډونه په هوا الوتل - غوښې باد بېدلې او لمبو او لوګي وار په
وار ځمکه، هوا او د ژوند هستي لاندې کوله.

نن وینې وې - اورونه وو - لوګي و او د بارود او سوځنده بوی. نن هر خبره
او هر تصور د قربانۍ و، د جنګ و، د غیرت و، د شهادت و، د برید و، د یرغل و، د
بم و، د ټانک او توپ و، د زخم و او د تپ او پرهر.

له کومې پنځې، له کومې دبرې او له کوم لوري به چې د ټوپک ږغ شو هلته
به بیا اور بل و - د بمونو باران او د ګولیو دندوکار به و. هلته به بیا نه بوټی
پاتې و نه کس او نه دبره - هغه ځای به سور اور شو، لمبه به شو، لوګی
به شو او وران او ویجاړ.

د هر سړي دا خیال و چې تر دغو ښارونو او کلو باریو لاندې به نه غوږ
روغ پاتې وي او نه کوم کور ودان - هر یوه دا فکر کاوه او همدا یې انګېرله
چې یوازې دئ ژوندی دی، نور ټول به دغو اورونو په لمبو د بمونو په باران



او د ګولیو په ږغلي او دندوکار کې هیڅ ژوندی روغ نه وي پاتې.

هلته چې د هر دوږ خوراب مرګ د هر سنګر انجام په او روستي کېدل او د وبه
لږ مقاومت قیمت د سر حتمي قرباني وه.

هلته چې د دښمن د بمونو، توپونو او ټانکونو له چلېدو سره د هغوی د
برچو د دهشت خپرونکو پروپاګنډو ویلو بې هم همدا ور چلېدې او هدایې
ژبغرانده لمبې پې ښندلې.

هلته چې مقاومت د حتمي نابودۍ نوم و او هلته چې مقابله د مرګ
غېږې ته له ځان غورځولو پرته بل څه نه و.

همدلته او په همغه ځای کې د خدای د لارې سرښندونکي د وطن له مینې
سرشار، د حق په مینې مست او د شهادت لېوالو له مقاومت اخوا - له شهادت پرته
او له دغې او مقابلې نه د بل لار، بله اسره، بل لوری او ګودر نه لیده.
نه یې پېژانده او فکر او تصور یې نشو ای کولی - د مرګ پر لوري
د شهادت په طرف، د وینو تر بیو یې پرخوا او د سر ښندنې په لاره یې پاخه،
درانده او داومن قدمونه اوچتول - داوړلکه چې هغوی یو تجارت په
لاره چولي وي - داسې تجارت چې ځانونه یې سکې کتنه وي بلل او هغه د خپلې
وینې په بدل کې د خپل سر په عوض کې د خدای ج، د رضا ګټل و - سبحان الله
څومره ویاړمن تجارت او څومره عظیمه ګټه.

* * *

نه دلته د همدغه سنګر خبره کوم یوازې د یوه سنګر کیسه د هغه سنګر
خبره چې د خپل مثالي مقاومت او قربانۍ له لارې یې د دښمن زور او وحشت
اوبه اوبه کړ او یو ځل بیا یې ثابته کړه، یو وار بیا یې وښوده چې کوم اولس
په وینه او سر د آزادۍ قیمت ادا کولی شي هغه غلام کېدلی نشي.
وطن به یې وران شي خو غلام به نشي او سر به ټیټ نکړي.

# ... اوهغوی خپل ارمانونه ترو رسېدل

فضا توره دوړو لاندې کړې وه. دلمر سترګه سمه نه ښکارېده. دباروتو سوی بوی له هر لوري پورته کېده. له هري خوا داوربیاران او دګولیو باران اورېده، په سترګو کې اوښکي وچي وې. خوږ ستني تښېدلي. سروونه ستي کېدل. سیني غلبیل کېدلي. هډونه په هوا الوتل. غوښي بادېدلي او لمبو او لوګي وار په وار ځمکه، هوا او د ژوندو هستي لاندې کوله.

نن ورځي وې. اوروونه وو. لوګي وو او دباروتو سوځنده بوی. نن هر خبره او هر تصور دقربانۍ وو، دجنګ وو، دنرغړي وو، دشهادت وو، دبرېد وو، دیرغل وو، دبم وو، دټانک او توپ وو، دزخم وو او دتپ او پرهر.

له کومي پرنښي، له کومي لوري او له کوم لوري به چي دټوپک د ډزشو هلته به بیا اوربل وو. دبمونو باران او دګولیو دندو کار به وو. هلته به بیا نه بوټي پاتي وو نه کس او نه ونې. هغه ځای به سور اور شو، لمبه به شو، لوګي به شو او وران او ویجاړ.

دهر سړي داخیال وو چي تر دغو بمبارونو او ګوله باریو لاندې به نه څوک ژوندي پاتي وي او نه کوم کور و دان. هر یوه دا فکر کاوه او همدا یې انګېرله چي یواځي دې ژوندي دي، نور ټول به دغو اورونو په لمبو د بمونو په باران



او دګولیو په برلي او دندو کار کي هېڅ ژوندي روغ نه وي پاتي.

هلته چي دهر دروند خوب مرګ دهر سنګر انجام په اورستي کېدل او دوېر لړ مقاومت قیمت د سر حتمي قرباني وه.

هلته چي د دښمن د بمونو، توپونو او ټانکونو له چلېدو سره دهغوی د برېڅو د دهشت خپروونکو پروپاګنډو ونوژ یې هم همدا ور چلېدې او هداسې ژبغړانده لمبې یې ښندلي.

هلته چي مقاومت دحتمي نابودۍ نوم وو او هلته چي مقابله د مرګ غېږي ته له ځان غورځولو پرته بل څه نه وو.

هلته او په هغه ځای کي دخدای (ج) دلاري سرښندونکي د وطن له مینې سرشار، دحق په مینه مست او دشهادت لېوالو له مقاومت اخوا له شهادت پرته او له دغې او مقابلې ړاد یخوا بله لار، بله اسره، بل لوری او کوم درنه لیده. نه یې پېژانده او فکر او تصور یې نشوای کولی. دمرګ پر لوري دشهادت په طرف، دوینو ټوپونو پر خوا او دسرښندنې په لاره یې پاخه، دراڼده او داوسپن قدمونه اوچتول. داوړلکه چي هغوی یو تجارت په لاراچولی وي. داسې تجارت چي ځانونه یې پکې ګټهندوي بلل او هغه دخپلو وینې په بدل کي دخپل سر په عوض کي دخدای (ج) درضا ګټل وو. سبحان الله څومره وېاړمن تجارت او څومره عظیمه ګټه.

* * *

زه دلته دهمدغه سنګر خبره کوم یواځې دیوه سنګر کیسه دهغه سنګر خبره چي دخپل مثالي مقاومت او قربانۍ له لاري یې د دښمن زور او وحشت اوبه اوبه کړ او یو ځل بیا یې ثابته کړه، یو وار بیا یې وښوده چي کوم اولس په وینه او سر د آزادۍ قیمت ادا کولی شي هغه غلام کېدلی نشي.
وطن به یې وران شي خو غلام به نشي او سر به ټیټ نکړي.

د هغو سرتېرو د سربښندنې یاد چې له یوې غځې په خپلو وینو کې ولمبېدل
د هغه سنګر یاد چې ټولو ساتونکو یې په دفاع کې د شهادت په غېږ کې سرونه
کېښودل او هغه سنګر چې د جنګیالیو د وینو رود یې په هغه ځګره کې د دښمن
د زور او وحشت ستنې ونړولې او د هغوی د شړېدلو ماتې تاریخ یې انځور
کړ. او هغه مورچل چې په خپلو وینو یې د وحشي دښمن د وحشت او بربریت
ټولې سرې کړې.

زه اوس هم دغه پوښتنې ته بې ځوابه یم چې څه ورپېدغه سنګر
کې د دغو لیرو سیمو او بېلابېلو حزبونو مجاهدین راغونډ شوي وو. چا
راغونډ کړي وو - چا قومانده ورکړې وه - کله څه ور او چېرته یې دا
پرېکړه غوټه کړې وه. داسې لکه چې قدرت پخپل لاس را ټول کړي او
انتخاب کړي وي - یو یو یې له هر حزب او هرې سیمې راغونډ او ټاکلي وي
لکه چې په دوی کې یې د داسې سترې مقابلې او مثالي قربانۍ قوت او
صلاحیت لیده چې د دوله به دلته یو مثالي یادګار پرېږدي د قربانۍ یادګار
او د سرلوړۍ د خاطرو یادګار.

په رښتیا هم داد قدرت کرشمه وه او د قدرت لوړ بینه.

سړی حیران شي - اوس هم بېدې سم نه شي پوهېدلی او ټې له دې چې د
قدرت لاس یې وبولي بل فکر نشي کولی.

دغه جنګ سهار لمانځه مهال ونښت. الوتکو د وسپنو او اورباران
پناوره او ټانکونو، د ګولیو بزلې، خو حق په مینه مستو ځوانانو ورته
خپل سرونه او سینې سپر کړې وې. غرمه شوه تکنده غرمه. ځمکه داور
لمبو نیولې وه او هوا لوخړو او ستړلوګې. کمرونه رغړېدل. غرونه نړېدل د
ونو پرېکېچې بدلې خو خدای د لارې دغه قهرمان سربښندونکي له ځایه
نه خوځېدل. د دوی ګوتې له ماشې نه ایسته کېده او ایله به هغه وخت



پر ماشه د دوی ګوتو حرکت پرېښود چې د دښمن ګومه سره ګولۍ به یې په تټر
کې سره شوه.

ژبې یې په تالو پورې کلکې نښتې وې خو د دوی د توپکو نو بارونه چلېدل.
د مرګ ویرونکي هیولا ورته غاښ خپلې داړې را ایستلې وې خو د دوی
سترګو هغه نه لیده. د دوی نظرونو لېرلیرې بل څه لیدل. بل څه یې
تصور کول او د هغه لپاره لېوال وو.

تر دې وخته نه - لس کسه شهیدان شوي وو. ماسپښین وچې درې
نور ملګري یې هم شهیدان شول. د راکټ او د هشکې مرمۍ خلاصې
شوې وې اوس له هغوی سره دا فکر وچې له شهادت وروسته یې دا
وسلې د دښمن لاس ته ورنشي - په دې د اطمینان یې پایې بس ته کړې - میل یې
خلاص کړ او په بوتو او شګو کې یې ښخې کړې.

د دښمن الوتکو، توپونو او ټانکونو خپل وس ختم کړ خو د دغه سنګر
د مقاومت غږ یې غلی نشوی کړی - د کومک مخابرې چالانې وې - د سرو پوځ
هغو سترو جنرالانو ته یې خبره ورسوله - نقشه او د ټول کیفیت تفصیلات او
خپله بې وسي یې ورته شرح کړه ماښام نږدې کېدونکی و او که یو ځل بیا خبره
شوې وای نو بیا خو دغه ټوله قوه او پوځ د دغه سنګر په ولکه کې و - زرزر یې
د قوماندې او کومک غوښتنې کولې د عاجل کومک او فوري مرستې.

* * *

مجاهد عبدالباقي له جیب څخه قلم راوېوست د کاغذ پر یوه ټوټه یې په ډېر
اطمینان ولیکل: «.... اوس قضا ما ته ګرځې زمونږ د هشکې او راکټ مرمۍ خلاصې
شوې او ترهغو بوتو او شګو لاندې ښخې کړې - تراوسه زمونږ دیارلس
تنه ملګري شهیدان شوي او موږ هم د خپل لوري هلاکت ته نژدې کېدونکي یو...»
دا کاغذونه یې له خپلو ... سره دیوه نهېدلی کمر په



د هغو سرتېرو د سربښندنې یاد چې له یوې خوا په خپلو وینو کې ولمبېدل
دغه سنگرونه چې تر اوسه ساتونکو یې په دفاع کې د شهادت په غېږ کې سرونه
کېښودل او هغه سنگر چې د جنګیالیو د وینو رود یې په هغه ځګره کې د دښمن
د زور او وحشت ستنې ونړولې او د هغوی د شرمېدلي ماتې تاریخ یې اغځور
کړ. او هغه مورچل چې په خپلو وینو یې د وحشي دښمن د وحشت او بربریت
مخې سرې کړې.

زه اوس هم دغه پوښتنې ته بې ځوابه یم چې څه ور پېدغه سنگر
کې د دغو لیرو سیمو او بېلابېلو حزبونو مجاهدین راغونډ شوي وو - چا
راغونډ کړي وو - چا قومانده ورکړې وه - کله څه ور او چېرته یې دا
پرېکړه غوټه کړې وه. داسې لکه چې قدرت پخپل لاس را ټول کړي او
انتخاب کړي وي - یو یو یې له هر حزب او هرې سیمې راغونډ او یوځای کړي
لکه چې په دوی کې یې د داسې سترې مقابلې او مثالي قربانۍ قوت او
صلاحیت لیده چې دا دوله به دلته یو مثالي یادګار پرېږدي د قربانۍ یادګار
او د سرلوړۍ د خاطرو یادګار.

په رښتیا هم داد قدرت کرشمه وه او د قدرت لور پېینه.

سړی حیران شي - اوس هم پېدې سم نه شي پوهېدلی او بې له دې چې د
قدرت لاس یې وبولي بل فکر نشي کولی.

دغه جنګ سهار لمانځه مهال ونښت - الوتکو د وسپنو او اورباران
پیل او او ټانکونو، د کولیو بزلی، خو د حق په مینه مستو ځوانانو ورته
خپل سرونه او سینې سپر کړې وې - غرمه شوه تکنده غرمه - حمله داوږه
لمبو نیولې وه او هوا لوخړو او توږلوکې. کرونه رغړېدل - غرونه نړېدل د
ډېرو پېرخچې یا وېدلې خو خدای دلاری دغه قهرمان سربښند ونکي له ځایه
نه خوځېدل - د دوی ګونه له ماشې نه ایسته کېده او ایله به هغه وخت



پر ماشه د دوی ګوتو حرکت پرېښود چې د دښمن کومه سر ګولۍ به یې په تندي
کې سره شوه.

ژړبې په تالو پورې کلکې نښتې وې خو د دوی د توپکونو بارونه چلېدل -
د مرګ ویرووونکې هیولا ورته ځلاغ خپلې دارې را بیستلې وې خو د دوی -
سترګو هغه نه لیدله - د دوی نظرونو تو هر لیرې بل څه لیدل - بل څه یې
تصور کول او د هغه لېوال وو.

تر دې وخته نه - لس کسه شهیدان شوي وو - ماسپښین وُچې دریې
نور ملګري یې هم شهیدان شول - دراکټ او د هشکي مرمۍ خلاصې
شوې وې اوس له هغوی سره دا فکر وُچې له شهادت وروسته یې دا
وسلې د دښمن لاس ته ورنشي - په ډېر اطمینان یې یا یې بېرته کړې - بیل یې
خلاص کړا او په بوتو او شکو کې یې ښخې کړې.

د دښمن الوتکو، تو پونو او ټانکونو خپل ورسختم کړ خو د دغه سنگر
د مقاومت غږ یې غلی نشوی کړی - د کومک مخابرې چالانې وې - د سرو پوځ
هغو سترو جنرالانو ته یې خبره ورسوله - نقشه او د ټول کیفیت تفصیلات او
خپله یې وسې یې وترشرح کړه ما بنام نېژدې کېدونکی وُ او که یو ځل بیا ن خبره
شوې وای نو بیا خو دغه ټوله قوه او پوځ د دغه سنگر په ولکه کې وُ - زر زر یې
د قوماندې او کومک غوښتنې کولې د عاجل کومک او فوري مرستې.

* * *

مجاهد عبدالباقي له جیب څخه قلم راوایست د کاغذ پر یوه ټوټه یې په ډېر
اطمینان ولیکل: «.... اوس قضا ما زیګردی زموږ د د هشکي او راکټ مرمۍ خلاصې
شوې او تر هغو بوټو او شکو لاندې ښخې کړې - تر اوسه زموږ دیارلس
تنه ملګري شهیدان شوي او موږ هم خپل لور هدف ته نژدې کېدونکي یو....»
دا کاغذونه یې له ... سره دیوه نرهېدلی کمر په



د قلم مجله به هڅه کوي چې د افغانستان د جهاد ، قيام او انقلاب
بېلابېل اړخونه ، بېلا بېلې سيمې او بېلا بېلې څنډې او ګوښې ګوټې
او د درنو لوستونکو له پاره يې روښانه کړي .

دا دی په دې ګڼه کې هم د هېواد په يوه څنډه کې د اسلامي
پاڅون او اسلامي اوښتون د شروع او پيل يو رښتينی او
واقعي تصوير وړاندې کوي او په همدې سيمه کې به قيام د قوام او
پراختيا په لوړ ځېرې چې پر له پسې به خپرېږي ليکوال په خپل پياوړي
قلم او خوږه ادبي ژبه دا تاريخ خوږ کړی او بختورنکی کړی چې
کله-کله لوستونکي ته سودا وروليږه کړي چې ګنې ده به دا قعيتونه
افسانوي کړي وي خو داسې نه ده هرڅه واقعي دي فقط د ليکوال
ژبه يې ادبي او جذابه ده او محتوی يې د واقعيتونو
او پېښو شوو پېښو انځور دی .

موږ يې تاسو درانه لوستونکي لوستلو ته رابولو
او ګران ليکوال يې بشپړولو او قدم په قدم په وړينېمنه
ادبي لاره باندې وړاندې تللو ته !

په مينه

" اداره "





د ګرمۍ پيل و، خو د لمر شغلې د سرې په تندې د اسې تيزې
لګېدې لکه تيرې ستنې ، له ډېرې تودوخې له ځمکې تپونه ختل ، د
آسمان مخ سپين او خړ ښکارېدو نو پوښلی و ، د درې په منځ کې سيند
مرام روان و ، د ګڼ چنارونه د شمال له څپو سره داسې ښنو په تال
يوه او بله خوا زنګېدل ، د پاختې سوې کوکې له بل هر وخت نه زياتې
سوځنده او ويرمنې شوې وې ، چوغکـــــــوبه داسې شور جوړ
کړی و لکه چې د سيمې د لس ښکونو ځوانانو او مشرانو په نيونه
ترې تم کيدو او شکنجو د ماتم ساندې غږولې .

بزګران په مات زړه په پټيو او کروندو کې په کار لګيا وو ،
د خپلې خونې د بېګار له لاسه مجبور وو چې د دوو دريو ورځو
کار په يوه ورځ کې سرته ورسوي ، د غسې به له بلې خوا په هفته کې
يو دوه ځله د جبري مارشونو ګډون هغوی له کار او مزدورۍ

... اوگولی وچلیدی


| | |
|---|---|
| لیکوال | شهرت ننگیال |
| خپروونکی | فرهنگ جهاد |
| شمیر | ۱۰۰۰ |
| نیټه | ۱۳۷۱ هـ ش حمل |
| مهتمم | پیر نور علی شاه |




# اهداء

خدای بخښلی علاقدار عبدالکبیرخان ته چی دخپل اسلامی بصیرت او ملی درایت له مخی یی دغه قیام دقوام په لوررهبری کړ او دخپل ولس دیوالی او جهادی عظمت په لارکی یی دسیاسی گوندیوله سیاسی اغراضو او عمالو سره قهرمانانه مبارزه وکړه .

په گور یی نور شه

ننگیال

